

**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د
روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي لارښود
# ریاضي

## لومړی ټولګی





د چاپ کال: ۱۳۹۳ هـ. ش.




**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د
ښوونکو د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست


# د لومـــړي ټولګي

# د ریاضی د ښوونکي لارښود





د چاپ کال: ۱۳۹۳ هـ . ش.

**ليکونکي**:

**۱ – سر مؤلف نظام الدين**

**۲ – ښوونمل محمد حسين (محسنی)**

**۳ – عبدالجلال (جلال)**

**ژباړونکی**:

**سر مؤلف نظام الدين**

**کتونکی ډله**:

**۱ – پوهنمل محمداجان (حقپال)**

**۲ – محقق محمد عارف غروال**

**د څارنې کميټه**:

– دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب او د ښوونکو د روزنې معين

– دکتور شير علي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې مسؤول

– سرمؤلف عبدالظاهر گلستانی د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رئيس.

ډيزاين: وليد

**پیام**

بسم الله الرحمن الرحیم

**گرانو ښوونکو او زده کوونکو!**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصا ب د ښوونې او روزنې مهم توکي دي چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتو کیږي. څرګند ه د ه چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلو ن په حال کې وي. له دې امله لا زمه ده چې تعلیمي نصاب هم دوخت له غوښتنوسره سم علمي او رغنده بدلو ن ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصا ب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

دښوونکي دلارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو او ترتیب شوی دی. دتدریس د نویومیتودونو له مخې فعالیتونه اومعلوماتي مواد پکې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به دزده کړې په بهیر کې دزده کوونکو دفعال ساتلو لپاره ګټور او اغیزمن وي.

هیله من یم ددې کتاب منځپانګه چې د فعالې زده کړې دمیتودونو دکارولوله لارې تالیف اوچمتوشوي،ستاسو درنو استاذانو دګټې وړ وګرزي. له فرصت څخه په استفادې دزده کوونکوله میندو اوپلرونو څخه غوښتنه کیږي دخپلو لوڼو اوزامنو په باکیفته ښوونه اوروزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توګه دپوهنې دنظام موخې اوهیلې ترسره شي اوځوان نسل اوهیواد ته ښې پایلې اوبریاوې وریه برخه کړي.

زموږ دګران هیواد استادان اوښوونکي دتعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده اودروند مسوولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږ ي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو اوارزښتونو،دټولنې د څرګندو اړتیاوو،ملي ګټو اووطن پالنې له روحیې اودساینس اوتکنالوژۍ له نورو علمي معیارونوسره سم پراختیا وموميي. د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پو ها نو او د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او دښوونکي دلارښود دکتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پو هانو څخه چې دد ې کتاب په چمتو کولو او ترتیبولو کې یې برخه اخیستي ده اوهمدارنګه له ملي اونړیوالو درنو موسسو اونوروملګرو هیوادونو څخه چې دنوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو اوتدوین اود درسي او دښوونکودلارښود کتابونو په چاپ اوویش کې یې مادي اومعنوي مرسته کړې ده،مننه اودرناوی کوم اودلانورو مرستو هیله یې کوم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردګ

د افغا نستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# لړلیک (فهرست)

| عنوان | مـــخ |
|---|---|

| عنوان | مــــخ |
|---|---|

**د لوست عنوان:** د چمتووالي دوره لومړی مخ

**وخت:** دوه ساعته د لوست

**موخې:** زده کوونکي وکولای شي د ښوونځي د چاپېريال سره بلدتيا پيدا کړي او له عددونو سره د هغه اړيکې وساتي.

**اصطلاحات:**

څوکۍ، کړکۍ، ور، توره تخته او ښوونځی.

**د لوست مرستندويه مواد:**

ور، کړکۍ، د ټولګي تخته، ښوونځی، د ښوونځي تصوير د هغه د چاپېريال سره.

**فعاليتونه:**

۱– ښاغلي ښوونکي دې د زده کوونکو سره له پېژندلو وروسته، هغوی يو بل ته وروپېژني، او په شفاهي توګه دې وپوښتي: څوک کولای شي ووايي ستاسو په ټولګي کې څو کړکۍ دي؟ ستاسو ټولګۍ څو توري تختې لري؟ ستاسو ټولګۍ څو ورونه لري؟ څوک کولای شي ووايي زموږ ښوونځي څو ورونه لري؟ ستاسو مخې ته څومره ميزونه دي؟

۲–د ښوونځي تشناب په کومه برخه کې دی؟ د تګ او راتګ لاره ښه وپېژنئ.

**۳–مشق او تمرين:** په ټولګي کې دې په زده کوونکو باندې مشق او تمرين وشي، يو شئ، دوه شيان، يو زده کوونکي، دوه زده کوونکي دې وښيئي او په کتاب کې تصويرونه دې په ټولګي کې عملاً کار وکړي.

**ارزونه:** ښاغلي ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي او خپل ځان دې ډاډه کړي چې زده کوونکو لوست زده کړی دی.

**پوهه:** څوک توره تخته ښودلای شي؟ څوک د ټولګي ور ښودلای شي. څوک د ښوونځي ور ښودلای شي؟

**مهارت:** زده کوونکی دې سم راتګ ښوونحي ته، ټولګي ته، او په څوکيو باندې په منظمه توګه کيناستل،


بسم الله الرحمن الرحيم

دچمتوالی دوره

هدف : دښوونځی دمحيط سره دعددونو پېژندلو رابطه

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکی دټولګی په دننه کې يو له بله سره بلد او په شفاهی توګه دې وپوښتې چې په ټولګی کې څو داني کلکينې او په هره کلکينې کې څو شيشي او په هر ګروپ کـې څـو هلکـان او څـو نجونی وينی.

هدف:زده کوونکی داحوال اخستلو اوپوښتنې کولو په طريقه پوه شي او هم ښئ اوکيڼ لوری وپېژنی.

تختې ته ورتګ او د ټولګي مخې ته درېدل په عملي توګه سرته ورسولای شي.

**ذهنيت:** آيا زده کوونکي له بلدتيا او ښوونځي ته د راتګ او بلدتيا اوهمدارنګه له خپل ښوونکی سره خوښ دي؟

**ارزښت:** زده کوونکي د ښوونځي د ننوتلو، او وتلو ور وپېژني، د ټولګي ښوونځي د څښلو د اوبو، د تشناب او نورو موقعيتونو په پېژندلو او د هغه څخه په کار اخستنې سره له ستونزو سره نه مخامخ کيږي او خپل ځان ته يو ارزښت ورکوي.

**کورنۍ دنده:** زده کوونکو ته دې دنده ورکړل شي چې سبا ته هر يو د خپلو دوو ټولګيوالو او د خوښې دوو شيانو او د خوړلو درېيو شيانو نومونه واخلي.




**د لوست عنوان: د چمتووالي دوره (۲–۳) مخونه**

**وخت: دوه ساعته د لوست**

**موخې:** زده کوونکي وتوانېږي:

۱– د احوال پوښتني کولو په طريقه پوه شي.

۲– سلام اچول په عملي توګه سرته ورسوي.

۳– خپل ښئ او کيڼ خواوي وپيژني.

**اصطلاحات:** سلام، احوال، کيڼ او ښئ.

**د لوست مرستندويه مـواد:** زده کـوونکي، ښـئ لاس، کيڼ لاس، کتاب، قلم، ميز او چوکی.

**فعاليتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکی دې کورنی دنـده پـه شـفاهی توګه لـه زده کوونکـو څخـه وپوښـتي، څـوک کولای شـي د احوال اخسـتلو(سـتړی مشـي) پوښتني وکړي؟ څوک کولای شـي پـه ښـوونځی کې تشناب وښيئي؟ څوک کـولای شـي د څښـلو اوبه وښيئي؟ څوک کولای شـي، خپـل ټولګيوالـو ته د تګ او راتګ لاره وښيئي؟

۲–دوه زده کـوونکی دي د ټـولګي مخـي تـه راوغواړي ترڅو د احوال اخسـتلو (سـتړي مشـي) پوښتنې په عملي ډول سـرته ورسـوي د سـتونزو د شتوالی په صـورت کـې دې ښـوونکی د احـوال اخستلو، د پوښتنو کولو په طريقـه کـې مرسـته او لارښوونه وکړي.

څوک خپل ښئ لاس ښودلای شـي؟ احمـد دې پـه خپل ښي لاس باندې کتاب پورتـه کـړي، محمـود دې په خپل کيڼ لاس باندې کتاب پورته کړي.




**۳–مشق او تمرين:** د احمد په ښي لاس کـې څـه شی دی؟ زما په ښـئ لاس کـې څـه شـی دئ؟ د محمود په کيڼ لاس کـې څـه شـي دي؟ يـو زده کوونکی دي د ټولګی ومخـي تـه راشـي او خپـل ټولګيوالو ته دي ووائي چـې خپـل ښـي لاسـونه جګ کړئ. او يو بل زده‌کوونکی دې ووايـي خپـل کيڼ لاسونه جګ کړئ.

**۴–ارزونه:** ښاغلی ښـوونکی دې د خپـل ځـان د داډ لپاره له زده کوونکو څخه پوښتني وکړي.

**پوهه:** په تاسو کې کوم دوه تنه کولای شـي يـو لـه بل سره د احوال اخستلو پوښتنه وکړي.

**پوهه:** څوک کولای شي خپل ښـئ لاس پورتـه کـړي؟ څوک کولای شی خپل کيڼ لاس پورته کړي؟

**مهارت:** زده کوونکی د احوال اخسـتلو پوښـتني سمي وکـړای شـي؟ زده کـوونکي دې د ښـئ او کيڼ توپير وکړای شي؟

**ذهنيت:** له زده کوونکو څخـه پوښـتنه کـول او د هغو پوهېدل په صحيح او سـمو پوښـتنو د ښـي او کيڼ په پوهيدلو سره احساس د خوشحالي کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي د صـحيح او سـم احوالـ اخستلو او پوښتنو په کولو پـه ښـوونځی او ټـولګی کې ځان ته ارزښت ورکوي.

**کورنی دنده:** زده کوونکو ته دې وويل شـي چـې سبا ته د خپلې کينی او ښئ خـواؤو همسـايه ګـان وواياست او په کور کې د خپل پـلار او مـور سـره څه ډول ستړی مشی کړی ده؟



**د لوست عنوان: د چمتووالي دوره (۴–۵) مخونه**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې:** زده کوونکي پورته، کښته، مخ کې، منځ کې او شاته وپېژني.

**اصطلاحات:** پورته، کښته، مخ کې، منځ او شاته.

**د لوست مرستندويه مواد:** تولگی، ميز، زده کوونکي، او نور محيطي شيان.

**فعاليتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکی دې کورنۍ دنده له زده کوونکو څخه په شفاهي ډول وپوښتي.

څوک خپل ښی لاس ښودلای شي؟ او يا څوک خپل کيڼ لاس ښودلای شي؟

۲–په تاسو کې کوم دوه تنه سترې مشی کوي، څوک کولای شي ووايي په ټولگي کې پورته شی وښـــيي؟ او کښته شی وښيي؟ څوک کولای شي ووايي پـــه ميـــز باندې څه شي ايښودل شوي دي؟ ښوونکی دې درې تنه زده کوونکي د ټولگي مخـــې تـــه راوغـــواړي او ودروي، وروسته له زده کوونکو څخه دې وپوښـــتل شي: څوک د چا مخې ته ولاړ دی؟ څوک په منځ کې ولاړ دی؟ او څوک شاته ولاړ دی؟ او همدارنگه درې نور زده کوونکی دې راوغواړي او نومونه دې واخلي لکه: احمد دې مخې ته ودريږي، محمود دې په منځ کې ودريږی او زلمی دې شاته ودريږي په همدې ډول نور فعاليتونه دې د زده کوونکو په واسطه وکـــارول وشي.

۳–زده کوونکی دې د لرونکو مواد په واسطه لکـــه کتاب، قلم، پنسل او کتابچه، په گروپي ډول پورتـــه، کښته، منځ کې، او شاته په خپلـــه کـــار وکـــړي او ښوونکی دې د کارکولو د جريان څارنه کوي.



۴–يوه زده کوونکي ته دې وويل شي په ميز بانـــدې کتاب کښيږده، او بل زده کوونکي ته دې وويل شي د ميز په منځ کې يو شئ کښيږده.

**۵–مشق او تمرين:** د ښوونکي پـــه مرســـته دې زده کوونکي په گروپونو باندې وويشل شي او په خپل منځ کې دې په گروپي شکل فعاليتونه سرته ورسوي. زده کوونکې دې د کتاب په شکلونو کې، پورته، کښـــته، مخ کې، منځ کې او شاته وښيئي.

**٦–ارزونه:** ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځـــان د ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي.

**پوهه:** زده کوونکي په خپله پورته، کښته وښـــيئي او همدارنگه شاته، مخ کې، په عملي توگـــه تشـــخيص کړي او ورته ودې ويل شي، څوک کولای شي قلم په ميز باندې کښيږدي، څوک کولای شي کتاب تر ميز لاندې کښيږدي.

**مهارت:** زده کوونکي دې په خپله خوښه، مخ کـــې، منځ کې، شاته ودريږي او هر يو د دوی دې يو شئ په خپل لاس پورته وښيي. او بل شئ دې د ميز نه کښته کښيږدی.

**ذهنيت:** د پورته، کښته، مخ کې، منځ کې او شاته په پوهيدو سره زده کوونکی احساس د خوشحالی کوي.

**ارزښت:** زده کوونکی په کور او د ښوونځي په محيط کې له پورته، کښته، شاته په خپل ورځنيو کـــړو وړو کې کار واخلي.

**۷–کورنۍ دنده:** زده کوونکی دی د سبا لپاره مواد لکه: (عکس، لوبيا، لرگوټي، لوبيا او نور شيان د خپل ځان سره راوړي او عملاًدی د ميز پورته، کښـــته، او منځ کې کښيږدي اوو دې ښيئي.

**د لوست عنوان: د چمتووالي دوره ٦ مخ**

**وخت: دوه ساعته د لوست**

**موخې**: زده‌کوونکي وتوانېږي په ترلو شکلونو کې دننه، او د باندې توپير يو له بله سره وکړي.

اصطلاح گاني: ترلی،دننه، دباندې

**د لوست مرستندويه مواد**: تار، کاغذ، لرگوټی، گاټی، زده کوونکی او د زده کوونکو بکسونه.

**فعاليتونه**: ښاغلی ښوونکی دې کورنۍ دنـــده لـــه زده کوونکو څخه په شفاهي توگه وپوښتي. څوک د احمد شاته دی؟ څوک کښته رانيسي؟

٢–ښاغلي ښوونکی دې له زده‌کوونکو پوښتنې وکړي: د ټولگی په دننه کې څه شی وينې؟ د ټولگی څخه بهـــر څه شی معلوميږي؟ تاسو د ټولگي په دننه کې ياست او که د ټولگي څخه په بهر کې؟ احمد ستا په بکس کـــې څه شي دي؟ د چا د حويلي په دننه کې ونې دي؟ د چا د حويلې په بهر کې ونې دي؟

٣–کوم شکلونه چې مخکې د ښوونکی پـــه واســـطه چمتو شوي دي، دننه او د باندې دې په گروپي ډول د زده کوونکو په واسطه وښودل شي.

٤–زده کوونکي دې په گروپونو باندې جلا شي. او هر گروپ دې خپل لاسونه يو بل ته سره ورکړي او يـــوه حلقه دې جوړه کـــړي او وروســـته دې، يـــو، يـــو زده‌کوونکی د حلقې په دننه کې ودريږي. او بيـــا دې يو، يو زده کوونکی د حلقې د بانـــدې ودريـــږي. او ښاغلي شوونکی دې د پوښتنې، او ځواب په توگه لـــه زده کوونکو څخه د ننه او د باندې د يوی لـــوبې پـــه شکل کار وکړي او د ستونزو په صـــورت کـــې دې مرسته ورسره وکړي.

**٥–مشق او تمرين**: زده کوونکي دې د کتاب تصوير او شکلونه ووينې دننه او د باندې دې د کتاب له مخې مشق او تمرين کړي. او په شکلونو کې دې د ننه او د باندې وښيئې.



هدف : زده کوونکي په ترلی شکلونو کې، دننه او دباندی يوله بله سره توپير وکړائ شي.

زده کوونکي دې په گروپی ډول سره وويـــشل شـــي يودبـــل ترځنگ دې ودريږي او ترلی شکلونه دې جـــوړ کـــړي اوپـــه هرگروپ کې دي يو، يو زده کوونکی دجوړی شوي حلقي پـــه دننه کې اويو زده کوونکی دې له حلقې څخه دباندی ودريږي او دواړه حالت دې له زده کوونکو څخه وپوښتي.

ښاغلی ښوونکی ترلی شکلونه له زده کوونکو څخه وپوښتی او همدا ډول دشيانو شتوالی دترلی خط په دننه او دباندې په برخه کې دې له هغو څخه پوښتنه وشي.

٦

**٦–ارزونه**: ښاغلي ښوونکي دې د ځان د ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي.

**پوهه**: زده کوونکي دې په شکلونو، د ښـــوونځی پـــه چاپيريال او کور کې د ننه تشخيص کـــړي؟ څـــوک کولای شی ووايي د ټولگي د باندې څه شي دي؟

**مهارت**: زده کوونکي دې د کوټې، ښوونځی، کور او ټولگی دننه او د باندې په صحيح او سمه توگه پـــوه او وښودلای شي.

**ذهنيت**: زده‌کـــوونکي د کـــوټې، کـــور، ټـــولگی او ښوونځی له دننه او د باندې په پوهېدلو سره خوشحالي کوي.

**ارزښت**: دننه او د باندې په پوهېدو سره کولای شـــي سم او مناسب کار واخلي.

**٦–کورنۍ دنده**: د سبا لپاره هر يو زده کـــوونکی دی يو، يو شئ د خپل کور په دننه، او د کور څخه د باندې نوم واخلي.




**د لوست عنوان: یو**

**(۷–۸) مخونه لومړی لوست**

**وخت: دوه ساعته د لوست**

**موخې:** زده کوونکي وکولای شي د یوه عدد تشـــخیص وکړي وبې لولي وبې شمیرى. او وبې لیکی.

**اصطلاحات:** عدد، یو

**د لوست مرستندویه مواد:** لرګوټي، قلم، ورې ډبــرې، کتاب او لوبیا.

**فعالیتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکی دې کورنۍ دنده له زده کوونکــو څخه په شفاهي توګه وپوښتي. او ښاغلی ښـــوونکی دې پاملرنه وکړي چې د پوښتنې او ځواب په واســطه تــول زده کوونکي په کې برخه واخلي.

او ښاغلی ښوونکی دې پوښتنې وکړي. تاسو هر یو څــو ښې لاسونه لرئ؟ تاسو هر یو څو ګیڼ لاســونه لــرئ؟ څوک یو قلم لري، څوک یو ورور لري؟ څــوک یــوه خور لري؟

۲–ښاغلی ښوونکی دې څو زده کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي او ورته ودي وايي چې هریو د تاسو یو، یو شئ په ټولګي کې وښیاست.

۳–زده کوونکي په ګروپونو جلا کړئ او د لوست مواد لکه لرګوټي، لوبیا، ورې ډبرې، قلــم او پنســل ورتــه ورکړي. او هر ګروپ دې یو دانه لرګوټی، یــوه دانــه لوبیا او یو دانه پنسل جلاء کــړي او ښــوونکی دې د ګروپي کار څارنه وکړي. ښاغلی ښـــوونکئ دې هغــه شکلونه چې پخوا د کتاب له مخې په کارتونو کې یو، یو




شئ رسم شوی دی تشخیص کړی او نوم دې واخلي.

ورروسته دې د یوه (۱) د لیکلو طریقه په هوا او په تخته باندې کار وکړي. او د هغه د لیکلو طریقــه دې څــو واري د زده کوونکو په واسطه په تخته او یا کتابچو کې وکارول شي.

**۴–مشق او تمرین:** ښوونکی دې په زده کوونکو باندې د شمیرلو، لوستلو او لیکلو طریقه په ټولګي کې د درسی موادو او هغو تصویرونو او شکلونو په واســطه چــې د کتاب په دویم مخ کې دي مشق او تمرین کړي. او تش ځایونه دې ډک کړي.

**ارزونه:** ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي او د ستونزو د شتوالي په صورت کې دې مرسته ورسره وکړي.

**پوهه:** زده‌کوونکي د یوه(۱) د عدد تشخیص کــولای شي؟ څوک د یوه(۱) عدد په شکل کې ښودلای شي؟

**مهارت:** زده‌کوونکي د یوه(۱) د عدد تلفظ او لوستل او په شکل کې وښودلای شي، زده‌کـــوونکي د(۱) عــدد ولیکلی شي.

**ذهنیت:** زده کوونکي د یوه عدد د شمیرلو، لوســتلو او لیکلو په پوهېدو سره خوشحالي ښکاره کوي.

**ارزښت:** د یوه (۱) عدد له پیژندلو وروسته زده کوونکي د بل عدد زده کولو ته چمتو کیږي.

**۵–کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د سبا لپــاره د(۱) عدد د کتاب له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي او پــه هغه تش چوکات کې چې یوازې د(۱) عدد لیکل شوی دی د هغه مخې ته دې د خپلی خوښی یو شئ په خپلــو کتابچو کې رسم کړي.




**د لوست عنوان: دوه**

**(۹ او ۱۰)مخونه، دويم لوست**

**وخت: درې ساعته دلوست (۴۵ دقيقه يي)**

**موخې:** زده کوونکي د دوو عدد تشخيص کړاى شـــي وېي شمیرى وېي لولي او د (۲) د عدد د ليکلـــو پـــه طريقه پوه شئ.

**اصطلاحات:** عدد، دوه (۲)

**د لوست مرستندويه مواد:** لرګـــوټي، ورې ډبـــرې، قلمونه، کتابچې، لوبيا، نخود او زده کوونکي.

**فعاليتونه:**

۱ – ښاغلى ښوونکى دې کورنى دنـــده وګـــوري او زده‌کوونکى دې د شاباس او آفرين په ويلو سره تشويق کړي او وروسته دى پوښتنه وکړي.

څوک يو شئ ښودلاى شي؟ څوک د يوه عدد د درې پرمخ ليکى؟ څوک يو موټر لري؟ په همدې ډول نورې پوښتني دې له زده کوونکو څخه وشي.

۲ – څوک کولاى شي ووايي وروسته له (۱) څخه څـــو دي؟ يا کوم عدد دى؟ څنې زده کوونکي بـــه ځـــواب ووايي او که چېرى وېي نشو ويلاى ښوونکى دې ووايي چې د (۲) عدد دى. وروسته دې پوښتني وکړي څـــوک په ټولګى کې دوه شيان ښيي، تاسو هر يو څـــو لاســـونه لرى؟ تاسو څو سترګى لرئ؟ تاسو څو غوږونه لرئ؟

۳ – زده‌کوونکى په ګروپونو ووېشئ او يو له بل څخـــه پوښتني وکړئ. او ځواب يې پيدا کړي دا دوه شـــيان دي په ټولګى کې وښيي، څوک دوه قلمونـــه لـــري؟ څوک دوې کتابچې لري؟ د (۲) تصويرونه او شکلونه چې مخ کې آماده شوي دي ودې ښودل شـــي. د دې فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د (۲) عدد د ليکلـــو



طريقه دې زده کوونکو ته ور زده کـــړي او د تختـــې پرمخ دې د ليکلو طريقـــه ورو‌ښـــوول شـــي. او زده کوونکي دې د (۲) عدد په خپلو کتابچو کې وليکي.

**۴–مشق او تمرين:** د کتاب د دويم مخ تصـــويرونه او شکلونه دې په زده کوونکو باندې کار وشي او د هغو شکلونو او تصويرونو له مخې دې تـــش ځايونـــه ډک کړي.

**۵–ارزونه:** ښاغلى ښوونکئ دې د خپل ډاډ لپاره لـــه زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته وکړي.

**پوهه:** زده‌کوونکي د (۲) عدد په شيانو کې ښـــودلاى شي، زده کوونکي د (۲) عدد د کتاب په شکلونو کې تشخيص کړاى شئ.

**مهارت:** آيا زده کوونکي د (۲) عدد په شـــيانو کـــې ښودلاى شي؟

زده‌کوونکي د(۲) عدد د کتاب په تصـــويرونو کـــې وښودلاى شي او وليکلى شي.

**ذهنيت:** د زده کوونکو ذهن د (۲) د عدد په پيژنـــدلو او پوهېدلو سره بدلون مومي او خوشحالي کوي.

**ارزښت:** د (۲) د عدد په پيژندلو سره د اړتيا په وخت کې دوه شي په کور او يا ښوونځى کې را اخلي.

**۶–کورنى دنده:** زده کوونکى دې د کتاب په نهم مخ کې تش دوه چوکاټ چې يوازې د (۲) عـــدد ليکـــل شوى دي د خپلي خوښى دوه شيان رســـم کـــړي. او همدارنګه د لسم مخ وروستى جدول دې پـــه خپلـــو کتابچو کې ډک کړي.




**د لوست عنوان: درې**

**(۱۱- ۱۲) مخونه**

**وخت: درې ساعته دلوست (۴۵ دقیقې)**

**اهداف:** زده کوونکي وکړای شي د ۳ عدد تشخیص کړي وبې شمیرې وبې لولي او وبې لیکي.

**اصطلاحات:** عدد، درې

**د لوست مرستندویه مواد:** لرګوټي، قلم، وړې ډبرې، کتاب او زده کوونکي.

**فعالیتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنی دنده ووینی د اشتباه په صورت کې دې هغوی تــه لارښــوونه وکــړي وروسته دې زده کوونکي په ګروپونو باندې وویشي او هــر ګروپ ته دې دنده ورکړل شي چې د خپلــې خوښــې دوو میوو نومونه واخلي او هم دې دوه شیان چې د ټولګي پــه دننه کې وي ښیي، نومونه دې واخلي، او له هر ګروپ څخه دې په جلاء توګه پوښتنه وشي. ستاسو په منځ کې څــوک دوه ورونه لري؟ یا ستاسو په منځ کې څوک دوې خویندې لري؟ او بل ګروپ ته دې هدایت ورکړي. چې تاسو هر یو دوه قلمونه پورته کړئ. او بل ګروپ هر یو دې ۲ دانــې لرګوټي پورته کړي.

۲–اوس کوم ګروپ ویلای شي چــې د دوو لــه عــدده وروسته کوم عدد دئ؟ ممکن په ګــروپ کــې څنــې زده کوونکي وي چې ځواب و ویلای شي چې د ۳ عــدد ده او وروسته په وار سره دې له نورو ګروپونو څخــه پوښــتنې وشي. درئ شیان د ټولګي په دننه کې وښیاست، او یا درئ قلمونه وښیاست او یا درې کتابونه پورته ونیسئ.

۳–یوه ګروپ ته دې وویل شي چې د خپل ګروپ له مــنځ څخه د خپلو درېو ټولګیوالو نومونه وواياست همدارنګه بل ګروپ ته دې وویل شي: د تاسو درې تنه دې د ټولګي مخې




ته ودریږی. او پاتې ګروپ ته دې ووایې چې هر یو د تاسو د خپل درېو ګاونډیانو نومونه ووایاست یا درې توري چــې په درې یا پښتو کې مو زده کړي دي نومونه واخلي.

۴–ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي د کتاب د ۱۱ مخ له تصویرونو او شکلونو سره بلد کړي وروســته دې د (۳) د عدد د لیکلو طریقه هغوی ته ور زده کړي او د زده کوونکو په واسطه دې په تختې یا کتابچو کې ولیکي.

**۵–مشق او تمرین:** زده کوونکي دې پــه دوو ګروپونــو وویشل شي د مشق او تمرین د مخ پوښتنې چې په هغه کې تش ځایونه دي. په مناسبو عددونو سره د ګروپونو په واسطه ډک کړل شي او کار دې ورباندې وشــي. او د ګروپونــو کارونه دې کنترول شي او همدارنګه د لاندې جدولونو تش ځایونه دې ډک شي.

| | | ۲ | | |
|---|---|---|---|---|

| ۱ | | |
|---|---|---|

**٦–ارزونه:** شاغلی ښوونکی دې د خپل ډاډ لپاره لــه زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي.

**پوهه:** څوک د (۳) عدد پېژني.

څوک په ټولګي کې ۳ شیان ښودلای شي؟

څوک ویلای شي چې له ۳ څخه مخ کې کوم عدد دئ؟

**مهارت:** زده کوونکي د ۳ عدد په شکلونو او شیانو کــې وښودلای شي، د ۳ عدد ولیکي او د ۳ عدد له کاغذ څخه جوړ کړای شي.

**ذهنیت:** زده کوونکي د ۳ عدد په پېژندلو او پوهېدلو سره خوشحالیږي.

**ارزښت:** زده کوونکي باید د ۳ عدد په خپل ورځنی ژونــد کې تطبیق او له هغه څخه په سمه توګه ګټه واخلي.

**۷–کورنی دنده:** د سبا لپاره هر یو زده‌کوونکی دې د کتــاب ۱۱ مخ ورروستی چوکاټ بشپړ کړي، په خپلو کتابچو کې دې ولیکي او د خپلې خوښې درئ شیان دې له ځانه سره راوړي.

**د لوست عنوان: شمېرل او پرتله کول**

**(۱۳) مخ**

**وخت: درې ساعته د لوست**

**موخې:** زده کوونکي وکولای شي له (۱–۳) وشميرى لږ او زيات يو له بله سره توپير او د مساوى په مفهوم باندې پوه شي.

**اصطلاح ګاني:** شمېرل، لږ، زيات او مساوي.

**د لوست مرستندويه مواد:** لرګوتي، د لوبيا دانې، نخــود، قلم، کتابچې، زده کوونکي او نور.

**فعاليتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکۍ دې کورنۍ دنده ووينې، هغه چا چې ښه کار کړى ده په چک چکو سره دې تشويق شي، او هغه چا چې اشتباه کړي ده، په خاصه مينه او صــميميت ســره دې لارښوونه ورته وشي. له زده کوونکو څخه دې پوښتني وشي نن چا په لاره کې درې شيان ليدلي دي؟ نومونه يې واخلي. احمد دې د خپل دريو ټولګيوالو نومونه واخلي.

۲–ښاغلي ښوونکي دې زده کوونکي په ګروپونو وويشي، درئ قلمونه دې خپلی مخې ته کښيږدي. او له يوه ګــروپ څخه دې دري زده کوونکي راوغواړي او د يوه بل ګروپ يوه زده کوونکي ته دې ووايي، له دې قلمونو څخه يــوازي يو، يو هر يوه ته ورکړه او له بل ګروپ څخه دې پوښــتنه وشي تاسو څه شي وليدل؟

ښائي چې زده کوونکي ځواب ووائي، چې هــر يــوه زده کوونکی ته يو، يو قلم ورکړل شو. بيا دې وپوښتي، کــوم قلم پاتي نه دئ يا کوم زده کوونکي ته قلم نه دي رسيدلئ؟ او همدارنګه دوه دانې لرګوتي دې په ميز باندې کښيږدي، او له يوه ګروپ څخه دې درئ تنه را وغواړي او د يوه بل ګروپ يوه زده کوونکي ته دې وويل شي، و هر يوه ته دې يو، يو لرګوتی ورکړل شي زده‌کونکي دوو زده کوونکــو ته، يو، يو لرګوتی ورکوي او يوه زده کوونکي ته لرګوتی نه رسيږي، وروسته له بل ګروپ څخه دې پوښتنه وکړي چې اوس مو، څه شئ وليدل؟ څه شئ زيات ؤو، او څه شئ لــږ ؤو. صحيح ځوابونه دې له زده کوونکو څخــه پــه لاس راوړي.

۳–ښاغلي ښوونکی دې له يوه ګروپ څخه دوه تنه او له بل ګروپ څخه دې دري تنه را وغواړي او جلاء، جــلاء دې ودروي، وروسته دې ووائي. له هر ګروپ څخه دې يو يــو تن راشي، يوه، يوه جوړه دې جوړه کړي او په وار سره دې پوښتني وکړي دلته مو وليدل چې له جوړه کولو وروسته يو تن د هغو پرته له جوړې پاتي کيږي، او ښوونکي دې لاندې پوښتني له ګروپونو وکړي. ولې يو تن يوازې پاتي شو؟ کوم ګروپ زيات ؤو؟ کوم ګروپ لږ ؤو؟

۴–زده کوونکي دې په ګروپونو وويشل شي، ديوه ګروپ، هر زده کوونکئ ته دې دوه لرګوتي او دري ورې ډبرې او




د بل ګروپ هر زده کوونکي ته دې درئ لرګــوتي او دري ورې ډبرې ورکړل شي او جوړه دې کړي، ښاغلی ښوونکی دې نتيجه له زده کوونکو وپوښتي او ځوابونه دې پــه لاس راوړي.

**۵–مشق او تمرين:** هغه شکلونه او تصويرونه چې د مساوي او نا مساوى په توګه په کتاب او چارت کې رسم شوى دې د زده کوونکو په واسطه دې يو په يو ونښلول شي ترڅو په خپله زده کوونکی لږ، زيات او مساوي تشخيص کړي.

**۶–ارزونه:** ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځان دپاره لپاره لــه زده کوونکو څخه پوښتني وکړي او د ستونزو په صــورت کي دې مرسته ورسره وکړي.

**پوهه:** څوک کولاى شي ووائي چې يو زيات ده او که دوه؟ څوک کولاى شي ووائي چې ستاسو په ټولګي کې کړکــي زياتي دي که وروڼه؟ څوک کولاى شي ووائــي چــې دوه هلکان زيات دي او که دوه نجونې؟

**مهارت:** زده کوونکي شيان جوړه، جوړه وکړای شــي، د لږ، زيات او مساوى شيانو تشخيص وکړاى شي.

**ذهنيت:** په لږ، زيات او مساوى باندې پوهېدل او د هغو له پرتله کولو زده‌کونکي خوند اخلي او خوشحاليږي.

**ارزښت:** زده‌کونکي د لږ، زيات او مساوي په پوهېدو سره، شيان په ښوونځی، ټولګی او کور کې پرتله کوي او د هغو توپير کولاى شي.

**۷–کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکئ دې، زده کوونکي پــه درى ګروپونو وويشي. لومړي ګروپ ته دې دنده ورکړي چې سبا ته هر يو د تاسو دوه، دوه لرګوتي له خپل ځــان سره راوړئ، دويم ته ووااياست، سبا ته هر يو د تاسو يــو لرګوتی لږ له لومړی ګروپ څخه راوړي او دريم ګروپ ته وواياست، چې هر يو د تاسو، يو يو لرګوتي لــه لــومړی ګروپ څخه زيات راوړئ.

**د لوست عنوان: څلور**

**(۱۴– ۱۵– ۱٦) مخونه، څلورم لوست**

**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي چې د څلورو عــــدد تشخیص کړي، ویې شمیرې، ویې لولي او د لیکلو پــــه طریقه یې پوه شي.

**اصطلاح ګاني:** عدد، څلور

**د لوست مرستندویه مواد:** لرګوټي، قلم، د لوبیا دانې، د نخودو دانې، د جوارو دانـــې، کتـــاب، کتـــابچې، زده‌کونکي او نور.

**فعالیتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکی، زده کوونکي په ګروپونو بانـــدې وویشئ ګروپونه د (۱– ۲– ۳ )په نامـــه یـــاد کـــړه وروسته د هر ګروپ کورنۍ دنده له نظره تیره کړئ د اشتباه په صورت کې لارښوونه ورته وکړه او پـــه وار سره له ګروپونو پوښتنې وکړه چې: په ټـــولګی کـــې کرکۍ زیاتې دي او که وروَنه؟

په ټولګی کې توري تختې زیاتې دي که وروَنه؟ ستاسو د ګروپونو په منځ کې کوم یو د تاسو نسبت بـــل تـــه زیاتې خویندې او زیات وروَنه لري؟

ستاسو د ګروپونو په منځ کې کوم یو د تاسو نسبت بل ته لږ خویندې یا وروَنه لرئ؟

ستاسو د ګروپونو په منځ کې د کوم یوه خوینـــدې او وروَنه سره مساوي دي؟

څوک د ۳ عدد د تختې په مخ لیکلای شي؟ څـــوک درې شیان په ټولګي کې ښیي؟

۲–اوس څوک ویلای شي چې د ۳ له عدده وروســـته کوم عدد دئ، ښائی چې زده کوونکي ځواب ووائـــي، له هغه پرته په خپله ښوونکی دې ووائي چې د(څلـــورو عدد دی)، د لومړي ګروپ څخـــه دې څلـــور تنـــه ودریږي، دویم ګروپ دې څلور قلمه وښیي، او دریـــم ګروپ دې څلور کتابه یا څلور شیان په ټـــولګی کـــې وښیي، او یا چا د پښتو په لوست کې څلور ټیکـــې زده کړې دي؟ وواياست. چا په علوم دینی کې څلور ټیکی زده کړي دي؟ وواياست. په همدې ډول نور فعالیتونه دې د زده کوونکو په واسطه کار وشي.




۳–وګروپونو ته اجازه ورکړئ چې هر ګروپ له بـــل ګروپ څخه د څلورو په برخه کې او یا د تیرو لوســـتو په برخه کې پوښتنې وکړي او ښـــاغلی ښـــوونکی دې یوازې مراقبت وکړي او که چیرې زده کوونکي غلطی یا اشتباه کوي مرسته دې ورسره وکړئ. او په انفرادي توګه هم کولای شي له ضعیفو زده کوونکـــو څخـــه لاندې پوښتنې وکړئ.

۴– ستاسو کومې څلور میوې خوښیږي، نومونـــه یـــې واخلې، تاسو د خپل څلورو ګاونډیانو نومونه واخلـــئ؟

څلور لرګوټي له لرګوټو څخه جلاء کړی.

یا څلور ورې ډبرې له ورو ډبرو څخه جلاء کړئ.

**۵–مشق او تمرین:** د زده کوونکو پام دې د څلـــورم







لوست شكلونو او تصويرونو ته را واړه وئ او له هغــو سره د څو شكلونو په برخه كې خبري وكړئ او هم د (۴) د ليكلو طريقه دې د تختې پرمخ هغوى ته ور زده كړې او څو واري دې د ۴ عدد، د زده كوونكو پــه واسطه په توري تختې يا په كتابچو كې مشق او تمــرين كړي. د زده كوونكو پام دې د ۱۵ مخ مشق او تمرين ته را وګرزوي، يو مثال دې په خپله ښوونكى د شــكل له مخې پر تخته وليكى او حل دې كړي وروســـته دې هدايت ورته وركړي چې پاتې پوښتنې دې هغــوى پــه خپله په كتابچو كې يا پر تخته باندې حل كــړي او د اړونــد عــــدد شــــاوخوا دى حلقــه كــــړي. د زده كوونكو كار دې وكتل شي او د اړتيا په صــورت كې دې له هغوى سره مرسته وشي.

**۶–ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونكى ډاډه شـــي آيــا زده كوونكي په نوي لوست پوه شوي او زده كړئ يې دئ كه نه؟ له هغو څخه دې لاندې پوښتنې وكړي.

**پوهه:** څوک کولاي شي د څلورو سابو نومونه واخلي؟ دا سابه ستاسو په كلي كې پيدا كيږي؟ سابه خام خوړل كيږي او كه پاخه؟ څوک لاندې جدول بشپړ كـــولاى شي؟

| ۴ | | ۲ | |
|---|---|---|---|

**مهارت:** زده كوونكي به وكړاي شي د ۴ عدد وليكي، زده كوونكي ۴ شيان وښودلاى شي. زده كـــوونكي د ۳ او ۴ توپير وكړاى شي.

**ذهنيت:** د ۴ د عدد په پيژندلو سره د زده كوونكو په ذهن كې بدلون رامنځ ته كيږي، مينـــه او خوشـــحالي ورسره پيدا كيږي.

**ارزښت:** د ۴ په پوهيدو سره، زده كوونكي كولاي شي هغه په ورځنۍ ژوند كې تطبيق او كار ورڅخه واخلي.

**۷–كورنۍ دنده:** په كتاب كې ۱۶ مخ په پـــام كـــې ونيسي د حل شوي مثال په توګه د كښته يا وروســـتي چوكات دري پوښتنې چې تصويرونه يا شكلونه يې رسم شوي دي په دركړل شويو عددونو كې په هر تصـــوير پورې د اړوند عدد په شاوخوا به خپلو كتـــابچو كـــې حلقه وباسي.




**د لوست عنوان: پنځه**

**(۱۷–۱۸) مخونه، پنځم لوست**

**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي د پنځو عدد تشخیص کړي وېې شمیرې وېې لولي او د هغه د لیکلو په طریقه پوه شي.

**اصطلاح ګاني:** عدد، پنځه

**د لوست مرستندویه مواد:** لرګوټي، قلم، د لوبیا دانې، کتاب، کتابچې، د جوارو دانې، زده کوونکي او نور.

**فعالیتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په درېو ګروپونو وویشي او کورنۍ دندې دې ووېني او له هر ګروپ څخه دې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: په ټولګي کې څلور شیان وښیاست؟ د خپلو څلورو ټولګیوالو نومونه واخلئ.

دویم ګروپ: هغه څوک چې څلور وروڼه لري ودې دریږي.

دریم ګروپ: څوک څلور لیکلای شي؟ تاسو ټوله لاندې جدول په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

| | ۲ | ۳ | |
|---|---|---|---|

۲–له ګروپونو څخه پوښتنې وکړئ له څلورو وروسته کوم عدد دئ ښائي په ګروپونو کې څنې ځواب ووائي (پنځه) او پوښتنه وکړئ، ستاسو یو لاس څو ګوټي لري؟ ستاسو یوه پښه څو ګوټي لري؟ څوک په ټولګي کې پنځه شیان ښودلای شي؟ څوک پنځه زده کوونکي شمیرې؟ څوک پنځه پوښتنې کولای شي؟

د هر ګروپ څخه دې پنځه، پنځه زده کوونکي ودریږي؟ د هر ګروپ څخه دې پنځه، پنځه زده کوونکي خپل ښي لاسونه پورته کړي، په همدې ډول نورې پوښتنې دې وپوښتل شي.

۳–ښاغلی ښوونکي زده کوونکي په دوو ګروپونو وویشي او زده کوونکو ته دې هدایت ورکړل شي ترڅو یو ګروپ له بل ګروپ څخه په وار سره پوښتنې وکړي، او د قناعت وړ ځوابونه دې په لاس راوړي همدارنګه زده کوونکي دې په درېو ګروپونو وویشي زده کوونکي دې یو له بله پوښتنې




وکړي.

۴–ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب شکلونو او تصویرونو ته را واړوي شکلونه او تصویرونه دې په زده کوونکو باندې حساب کړي او په پای کې دې د پنځو د لیکلو طریقه هغوی ته ور زده کړي او د زده کوونکو په واسطه دې مشق او تمرین شي.

**۵–مشق او تمرین:** ښاغلی ښوونکی دې د کتاب ۱۸ مخ مشق او تمرین چې د پنځو لوست دی زده کوونکي متوجه کړي ترڅو د شکلونو او تصویرونو له مخې د پنځو عدد وپېژني. او د هغه د لیکلو په طریقه پوه شي. وروسته د هغوی پام دې مشق او تمرین ته راوګرزوي او تش ځایونه دې د زده کوونکو په واسطه ډک کړي.

او په پای کې دې لاندې جدولونه ډک کړي.

| ۵ | | ۳ | | ۱ |
|---|---|---|---|---|

| ۱ | | | ۴ | |
|---|---|---|---|---|

**٦–ارزونه:** ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځان د ډاډ لپاره، چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ دی او که نه؟ له هغو څخه پوښتنې وکړي.

**پوهه:** څوک کولای شي د پنځو میوو نومونه واخلئ؟

څوک د پنځو ډوله ونو نومونه اخلي؟ کومه یوه یې میوه لري او کوم یوه یې میوه نه لري؟ څوک د پنځو لوبو نومونه اخستلای شي؟

**مهارت:** زده‌کوونکي وکړای شي د پنځه عدد په صحیح توګه ولولي، وېې لیکي او وشمېرلای شي.

**ذهنیت:** د دې عدد په زده کولو سره زده کوونکي د نورو عددونو زده کړې ته په خوشحالي سره سترګې په لاره کیږی په مینه او علاقې سره احساس د خوشحالي کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي له (۱–۵) پورې د عددونو په پېژندلو سره په ورځني ژوند کې کار ورڅخه اخلي په بازار او کور کې د ګټې اخستلو وړ ګرځوي.

**کورنۍ دنده:** د ۱۷ مخ په کښتنۍ جدول کې د ۵ عدد دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او له ځان سره دې راوړي په بل ساعت کې دې د ۱۸ مخ جدول بشپړ کړي.

**د لوست عنوان: د مساوي، لږ او زيات پېژندل**
**(۱۹) مخ، شپږم لوست**
**وخت: د لوست درې ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدفونه:** زده کوونکي لږ، زيات او مساوي تشخيص کړای شي او د (<،>، =) د نښو کارولو لپاره چمتو شي.

**اصطلاح ګاني:** لږ، زيات، مساوي.

**مرستندويه مواد:** لرګوټي، ورې ډبرې، د لوبيا دانې، د نخودو دانې، د جوارو دانې، قلم، کتاب، کتابچې، زده کوونکي او نور.

**فعاليتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو باندې وويشي او د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وليدل شي ترڅو په خپله زده کوونکي په خپله غلطۍ او اشتباهاتو باندې پوه شي ښاغلی ښوونکی دې لارښوونه او مرسته وکړي او لاندې پوښتنې دې وکړي. له لومړي ګروپ څخه دې پنځه تنه د ټولګي مخې ته ودريږي.

له دويم ګروپ څخه پنځه تنه خپل ښي لاسونه پورته کړي، څوک پر تخته پنځه ليکي؟ په همدې ډول نورې پوښتنې دې وشي.

۲–يو زده کوونکی د ټولګي مخې ته را وغواړئ او هغه ته ووايي: له لومړي ګروپ څخه پنځه تنه را وغواړئ. او له بل زده کوونکي څخه وغواړي د دويم ګروپ څخه څلور تنه راوغواړي. او له زده کوونکو څخه دې وپوښتل شي، له لومړي ګروپ څخه څو تنه جلاء شوي دي. او له دويم ګروپ څخه څو تنه جلاء شوي دي د هغو تر منځ د لږ او زيات توپير وينئ. په همدې ډول له يوه ګروپ څخه څلور تنه او له بل ګروپ څخه څلور تنه راوغواړي او هغوی دې جوړه جوړه کړي. بيا دې وپوښتي: اوس څه شی ويني. لږ دي، زيات دي او که مساوي دي. ښائي چې زده کوونکي ځواب ووائي. چې مساوي دي که چيری يې نه شي ويلای. ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي همدارنګه د لوست مرستندوي مواد لکه لوبيا، نخود، جواري، لرګوټي او ورې ډبرې ورکړل شي او ورته ودې ويل شي چې لږ، زيات او مساوی د موادو په واسطه وښياست.

۳–د زده کوونکو پام د کتاب د ۱۹ مخ شکلونو او تصويرونو ته راوګرزوی، وروسته د تصويرونو او




شکلونو د شميرلو په واسطه لږ، زيات او مساوي وښياست.

**۴–مشق او تمرين:** زده کوونکی دې د کتاب ۱۹ مخ ته راوبولي حل شوی مثال دې وروښودل شي د کار شوي مثال په ډول نورې پوښتنې دې د زده کوونکو په واسطه کار وکړي. زده کوونکی دې شکلونه د خطونو نښلولو په واسطه وښيئي.

**۵–ارزونه:** ښوونکی دې د خپل ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي او د ستونزو په شتوالي سره دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:** څوک لږ، زيات او مساوي د ۳ او ۴ په عددونو کې ښيي؟
څوک ويلای شي چې ۲ زيات دي او که ۳؟
څوک کولای شي ووايي چې ۴ لږ دي او که ۵؟

**مهارت:** زده کوونکي د دې وس او توان پيدا کړای شي چې په عددونو او يا شيانو کې لږ او زيات وښيي.زده کوونکي د کاغذ په واسطه د لرګوټو لږ او زيات پرتله کړای شي.

**ذهنيت:** د لږ، زيات او مساوي په پېژندلو سره د عددونو په منځ کې توپير کولای شي د پرتله کولو په پوهيدو سره احساس د خوښي کوي.

**کورنۍ دنده:** د لومړي ګروپ: هر يو دې ۳ شيان له خپل ځان سره راوړي. د دويم ګروپ: هر يو دې، يو شئ لږ له لومړي ګروپ څخه د خپل ځان سره راوړي. دريم ګروپ: هر يو دې يو شئ له لومړي ګروپ څخه لږ او مساوی له دويم ګروپ سره له خپل ځان سره راوړي.



**د لوست عنوان: د « < ، > او =» نښو پیژندل او لیکل**

**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** د =، > او < نښو پیژندل، لیکل او کار اخستل په مناسبو ځایونو کې.

**اصطلاح ګاني:** د لوی، کوچنی او مساوي نښې.

**د لوست مرستندویه مواد:** د کوچنی، لوي او مساوی نښې د کاغذ په واسطه، د لاس په واسطه، د قلم په واسطه او د لرګوتو په واسطه.

**فعالیتونه:** ښاغلی ښوونکی: د لوست په پیل کې دې د زده کوونکو کورنۍ دنده وکتل شي او له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ: څوک ویلای شي چې دوه زیات دي او که دري.

دویم ګروپ: څوک ویلای شي چې ۵ زیات دي او که ۴

دریم ګروپ: څوک وائي چې ۴ کتابچې زیاتي دي او که ۴ کتابونه. وروسته دې په جلا توګه هم پوښتنې وکړي: احمد دې ووایي ۴ زیات دي او که ۳، محمد دې ووایي ۵ لږ دي او که ۴، نذیره! د ۲ او ۳ په عددونو کې کوم یو یې زیات او کوم یویې لږ دي.

۲–ښاغلی ښوونکی دې د کوچني، لوي او مساوی (<، > او=) نښې زده کوونکو ته ور زده کړي او د نښو دواړو خواوته دې د عددونو مناسب ځای زده کوونکو ته وښیي. او د ښې زده کړي لپاره دې نور مثالونه هم زده کوونکو ته ووایي، او نښې دې د زده کوونکو په واسطه پر تخته باندې مشق او تمرین شي، زده کوونکي دې په ګروپونو باندې وویشي او زده کوونکو ته وښیي چې کوم ګروپ یو له بله سره مساوي دي، کوم ګروپ زیات دی، او کوم ګروپ لږ دی. زده کوونکي دې په خپله هغوی یو له بله سره توپیر وکړاي شي. زده کوونکي دې د کوچنی،



لوی او مساوي نښې دورکړل شوو پوښتنو په تش ځایونو کې په مناسبوځایونو کې ولیکي.

**۳–مشق او تمرین:** د زده کوونکو پام دې د کتاب ۲۱ مخ ته راوګرزول شي لکه حل شوي مثال د شکلونو او تصویرونو له مخې د > او < نښو دواړه خواووته دې مناسب عددونه او همدارنګه په ☐ تش ځای کې دې د >، < او= مناسبه نښه ولیکي کوشش باید وشي چې کار په ګروپي ډول سرته ورسول شي.

**۴–ارزونه:** ښاغلی ښوونکی دې د خپل ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته وکړي.

**پوهه:** څوک کولای شي؟ د کوچني، لوی او مساوی نښې د لرګوتي یا کاغذ په واسطه وښیي. څوک کولای شي؟ له کوچني، لوی او مساوي نښو څخه کار واخلي په شکلونو او تصویرونو کې وښیي؟

**مهارت:** زده کوونکي د کوچنی، لوي او مساوي نښې په مناسبو ځایونو کې وښیي او ولیکلای شي، د لږو او ډیرو توپیر په شیانو کې وکړائ شي.

**ذهنیت:** د شیانو او اجناسو د توپیر پیژندل، او په مناسب ځایونو د >، < او= نښو په استعمالولو سره زده کوونکي احساس د خوشحالی کوي.

**ارزښت:** د لږ، زیات او مساوي په پوهېدو سره زده کوونکي په ورځني ژوند کې ورڅخه کته اخلي او شیان یو له بله سره پرتله کوي.

**کورنۍ دنده:** د لاندې پوښتنو تش ځایونه د >، < او= نښو په واسطه ډک کړي.

۵ ☐ ۳

۵ ☐ ۵

۴ ☐ ۵

**د لوست عنوان: شپږ (٦)**

**۲۲ مخ، اتم لوست**

**وخت: درې ساعته د لوست**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړایځ شي د (۱–٦) پـوري عددونه تشخیص کړي وشمېري، ويې لـولي، او پـه صحیح توګه د لیکلو په طریقه پوه شي.

**اصطلاح ګاني:** عدد، شپږ

**د لوست مرستندویه مواد:** لرګوتي، وړې ډبرې، د لوبیا داني د جوارو داني، کتاب، قلم، زده کوونکي او نور د چاپیریال مواد.

**فعالیتونه:**

۱–زده کوونکي دې په څلورو ګروپونو وویشل شي او کورنۍ دندې دې ولیدل شي وروسته له هــر ګــروپ څخه دې په وار سره پوښتنه وشي لکه په لانــدې ډول مثالونه: له لومړي ګروپ څخه دې پنځه تنه ودریــږي: احمد دې د دویم ګروپ د پنځو تنو نومونه واخلــي. دریم ګروپ تاسي کوم پنځه مضمونونه لولئ؟ څلورم ګروپ د څا ورونه په پنځم ټولګي کې دي. او لوست لولي؟ په همدې ډول کولای شی په جلاء جلاء توګه له زده کوونکو څخه پوښتني وکړي. ۵ زیات دی که ۴. ۳ لږ دي او که ۲، دوه داني لوبیاوی زیاتي دي که ۲ داني جوار.

۲–وروسته له محمود څخه دې وپوښتي: پوهیږې چې وروسته له پنځو کوم عدد دئ؟ که چېرې ځواب ونــه وایي، له نورو زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي. ترڅو هغوی ووایي (شپږ).

هر ګروپ دې شپږ، شپږ کتابونه وښيي، لومړی ګروپ دې شپږ داني لرګوتي وښیئي. دویم ګروپ دې ٦ قلم وښیئي، له دریم ګروپ څخه دې شپږ تنه ودریږي او د ژوند د آداب په مضمون کې هغه شــپږ شــیان چــي مولوستلي دي، نومونه يې واخلئ. او د پښتو په مضمون کي د شپږو تورو نومونــه واخلــئ. او زده کــوونکي وهڅوی ترڅو هغوی په خپله يو له بله پوښتني وکړي.

۳–ګروپونو ته اجازه ورکړئ، چي هر ګروپ له بــل ګروپ څخه پــه وار ســره د کتــاپ د شــکلونو او تصویرونو په برخه کي پوښتني وکړي. لکه څو چوغکې دي؟ څو داني منې دي؟ څو کوترې دي؟ څــو پیــالي وینئ؟ څو چاړې وینئ؟ او څو ناکه دي؟

وروسته د هغو د لیکلــو طریقــه پــر تختــه بانــدې زده‌کوونکو ته ور زده کړئ. او ښوونکي دې هــدایت ورته ورکړي چي هر يو د هغو دې، شپږ، شپږ واری د ٦ عدد په خپلو کتابچو کي ولیکی.

ښاغلی ښوونکی دې د زده‌کوونکو د کــار کولــو د جريان مراقبت وکړي. او د اړتیا په صورت کي دې د هغوی سره مرسته وکړي.




**۴–مشق او تمرین:** د کتاب د ۲۲ مخ د شــکلونو او تصویرونو له مخي دې د شپږو عدد ولیکی. او لانــدې جدولونه دې ډک کړي.

| ۱ |  | ۳ |  | ۵ |  |  | ۲ |  | ۴ |  | ٦ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

**۵–ارزونه:** ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځــان د ډاډ لپاره لاندې پوښتني وکړي.

**پوهه:** څوک د خپلو شپږو تنو ټولګیوالو نومونه اخلي، یا څوک د شپږو شیانو نومونه اخلي؟ څوک په ټــولګي کي شپږ شیان ښودلای شي؟

**مهارت:** هر يو زده کوونکی دې وکړای شي د ٦ عدد په خپلو کتابچو کي ولیکي. زده کوونکي وکړای شــي په وار سره دې لاندې جدول تش ځایونه ډک کړي.

|  |  | ۴ |  | ۲ |  |
|---|---|---|---|---|---|

**ذهنیت:** د ٦ په پوهېدو سره د زده کوونکو ذهنیــت بدلون مومي او تر ٦ پورې د شیانو جلاوالي په خپلــه کوي او په مناسب ځای کي له هغه څخــه پــه کــار اخستني سره خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:** د ٦ په پوهیدو سره زده کوونکي په ورځنــي ژوند کي کار اخلي د کور د شیانو په شمیرلو، او لــه هغۍ ګانو څخه د يوه شي په اخیستلو کي ګټه ورڅخــه اخستلای شي د پښتو، دري، علوم دینــي او د ژونــد آداب په مضمونو نو کي هم ګټه ورڅخــه اخیســتلای شي.

**٦–کورنۍ دنده:** هريو د تاسو د پښتو يو تورئ شپږ، شپږ، واري په خپلو کتابچو کي ولیکی او سبا ته يې له خپل ځان سره راوړئ.

او همدارنګه د ۲۲ مخ د کښتنۍ جدول تش ځایونه په خپلو کتابچو کي ډک کړي.

**د لوست عنوان: د اووه او اته عددونه**
**۲۳ مخ، نهم لوست**
**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي چې د اووه او اته عددونه تشخیص کړي، ویې شمیری، ویې لولي او ویې لیکي.

**اصطلاح ګاني:** عدد، اووه، اته.

**د لوست مرستندویه مواد:** لرګوټي، وړې ډبرې، کتاب، کتابچې، تباشیر، فلش کارتونه او نور د چاپیریال مواد.

**فعالیتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکی د کورنۍ دندې له لیدلو وروسته زده کوونکي په څلورو ګروپونو وویشئ، او هر ګروپ چې د لوست مرستندوی مواد یې مخکې له خپلو ځانو سره راوړي دي په میزو باندې دې کښیږدي، لومړی ګروپ دې شپږ دانې **کتابچې**، دویم ګروپ دې شپږ ټوکه کتابونه، دریم ګروپ دې شپږ دانې لرګوټي او څلورم ګروپ دې شپږ دانې وړې ډبرې جلاء کړي. کوم ګروپ دا کار ژر سرته رسولای شي ښاغلی ښوونکی دې پام ورته وکړي او زده کوونکی دې په ښو کلمو سره تشویق کړي.

لومړی ګروپ: د ٦ عدد پنځه واري په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

دویم ګروپ: د ٦ عدد شپږ واري په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

دریم ګروپ: د لومړی ګروپ سره برابر د ٦ عدد په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

۲–په ګروپونو کې کوم یو ګروپ ویلای شي چې د شپږو (٦) د عدد وروسته کوم عدد دئ؟

احمد دې ووایي.

له ګروپونو څخه کوم یو ګروپ اووه دانې قلمونه رانښيئ، محمود دې ووایي. په ګروپونو کې کوم یو تن اووه وروڼه لري؟ زلمی دې ووایي.

ښاغلی ښوونکی چې ډاډه شي چې اوس زده کوونکو د اووه عدد تشخیص کړئ دئ.

د کتاب لومړې شکلونه دې زده کوونکو ته ور ونښيئ، او له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي په شکل کې څه شئ ویني نومونه یې واخلي او د هغه شمیر څو دي؟ او د هغو د لیکلو طریقه دې لومړی په خپله ښوونکي په هوا او پر تخته باندې کار وکړي. په داسې حال کې چې د ۷ د عدد د حرکت لوري ور ونښيئ، وروسته د اووه د لیکلو طریقه دې د زده کوونکو په واسطه په کتابچو کې یا پر تخته باندې کار وکړي په همدې ډول دې د اتو په عدد باندې هم کار وکړي.

**۳–مشق او تمرین:** د زده کوونکو پام دې د کتاب ۲۳ مخ ته راوګرزوي او پوښتنې دې وکړي. په لومړی چوکاټ کې څه شئ رسم شوي دي نوم یې واخلئ، او وواياست څو دانې دي؟ حساب یې کړئ، د هغه ترخنګ چوکاټ کې څه شی رسم شوي دي نوم یې




واخلی او وواياست څو دانې دي وشمیری، لومړی ګروپ دې له دویم ګروپ، او دریم ګروپ دې د څلورم ګروپ څخه د پاڼې چوکاټونو په برخه کې پوښتنې وکړي، او ښاغلی ښوونکی دې څارنه او مرسته ورسره وکړي. او د امکان په صورت کې دې لارښوونه وکړي او ښاغلی ښوونکی دې پاملرنه وکړي چې په ګروپي کارونو کې ټوله زده کوونکي برخه واخلي او وار مراعات کړي. او له زده کوونکو څخه دې په جلاء، جلاء توګه هم پوښتنې وکړي. چې د ۷ عدد زیات ده او که د ۸ عدد، یا د ۸ عدد لږ ده که د ۷ عدد.

**۴–ارزونه:** د دې دپاره چې ښوونکی خپل ځان ډاډه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی ده او که نه پوښتنې دې وکړي او د ستونزو په صورت کې په ډیره ښه توګه دې لارښوونه ورته وشي.

**پوهه:** څوک په ټولګي کې اووه شیان ښيئ؟ له دویم ګروپ څخه څوک د خپل اووه ټولګیوالو نومونه اخلي؟ له دریم ګروپ څخه څوک اته قلمونه ښيي؟ له څلورم ګروپ څخه څوک کولای شي خپل اته ټولګیوال ودروي؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي د ۷ او ۸ عددونه په صحیح توګه ولولي او ولیکي. زده کوونکي د ۷ او ۸ په منځ کې د لږ او زیات توپیر تشخیص کړای شي.

**ارزښت:** د ۷ او ۸ په پیژندلو او همدارنګه د ۷ او ۸ د توپیر په کولو سره، په بازار کور او هتې کې په ورځنی ژوند کې ګټه ورځخه اخلي.

**کورنۍ دنده:** زده کوونکو ته دې دنده ورکړل شي چې هر یو د ۷ او ۸ عددونه له کاغذ څخه جوړ کړي او همدارنګه د ۷ او ۸ عددونه په خپلو کتابچو کې ۷ واري او ۸ واري ولیکي.






**د لوست عنوان:** مشق او تمرین (کوچنی، مساوي، لوی)، ۲۴–۲۵ مخونه

**وخت:** د لوست درې ساعته (۴۵ دقیقه یې)

**موخې:** د (<، = او >) نښو مشق او تمرین د هغو د لوستلو او لیکلو طریقه او د نښو استعمالول په مناسبو ځایونو کې.

**اصطلاحات:** کوچنی، لوی او مساوي.

**د لوست مرستندویه مواد:** زده کوونکي، لرګوټي، ورې ډبرې، کتاب او کتابچې.

**فعالیتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دنده په غور سره وګوري او زده کوونکي دې په ۳ ګروپونو وویشي د مخکنۍ لوست په برخه کې چې د ۷ او ۸ عددونه دي معلومات واخلي. لومړی ګروپ د لرګوټو او ورو ډبرو په واسطه د ۷ او ۸ عددونه وښيي، دویم ګروپ لږ او زیات د قلمونو په واسطه وښيي.

۲–وروسته ګروپونو ته دې په مشخص ډول وویل شي: داسې ودریږی چې یو ګروپ د (>) نښه، بل ګروپ د (<) نښه او دریم ګروپ د = نښه جوړه کړي.
د نښو صحیح والی او غلط والي دې له ګروپونو څخه وپوښتل شي.

۳–ښاغلی ښوونکی دې دا (>) نښه له لرګوټو څخه جوړه کړي او په میز باندې دې داسې کښیږدي، چې زده کوونکي یې ولیدلای شي، وروسته احمد ته دې وویل شي. چې نظر محمود ته ډیر لرګوټي جلاء کړه او د (>) نښې په مناسب ځای کې یې کښیږده، او همدارنګه محمود ته ووایه چې نظر احمد ته لږ لرګوټي جلاء کړه او د هم هغې نښې په مناسب ځای کې کښیږده په همدې ډول نور فعالیتونه دې په نوبت سره د زده کوونکو په واسطه کار وکړي.

**۴–مشق او تمرین:** د زده کوونکو پام د کتاب د ۲۴ مخ شکلونو او تصویرونو ته راواړه وي. لومړی دې د هغو نمونه واخلي او ودې یې شمیري وروسته د حل شوي مثال په توګه د >، < او = د نښې د شکلونو په تښو ځایونو کې چې د دوو عددونو ترمنځ شتوالي لري ولیکی په همدې ډول دې د کتاب ۲۵ مخ ووینی یوه پوښتنه دې ښوونکی پر تخته باندې حل کړي. او نورې پوښتنې دې زده کوونکو ته دنده ورکړي ترڅو د >، < او = نښې په مناسب ځایونو کې ولیکي او حل یې کړي.

**۵–ارزونه:** د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ پیدا کړي چې آیا زده کوونکو د >، < او = نښې په صحیح توګه زده کړي دي لاندې پوښتنې دې وپوښتي. د ستونزو په صورت کې دې مرسته وکړي.

**پوښه:** څوک دا > نښه د خپل ګوتو په واسطه ښودلای شي؟ څوک د < او = نښې د ګوتو او لرګوټو په واسطه ښودلای شي.

**مهارت:** زده کوونکي په لاندې تشو ځایونو کې د >، < او = نښې په مناسبې ځایونو کې ولیکلای شي.
۱ ☐ ۴، ۱ ☐ ۶، ۳ ☐ ۲

**ذهنیت:** زده کوونکي د (>، < او =) نښو په پوهیدو سره، بدلون د ذهن کوي د زیات او لږو تر منځ توپیر کوي او د زیاتو شیانو غوښتونکي کیږي.

**ارزښت:** زده کوونکي د لږ او زیات په زده کولو او پیژندلو سره، په خپل ورځني ژوند کې کار اخلي.

**۶–کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکې دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې په خپله خوښه د (>، < او =) نښې د چاپیریال له ډیرو ساده موادو څخه لکه کاک کاغذ او لرګي څخه جوړ کړي او سبا ته دې یې له خپل ځان سره راوړي. او هم د کتاب د ۲۵ مخ څلور وروستي پوښتنې تش ځایونه ډک کړي.

**د لوست عنوان: د نهو (۹) عدد**

**۲۶ مخ، لسم لوست**

**وخت: درې د لوست ساعتونه**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د نهو عدد تشـــخیص کړي له (۱–۹) عددونه وشمیری ویي لـــولي او ویـــې لیکي.

**اصطلاحات:** عدد، نه

**د لوست مرستندویه مواد:** لرګوټي، د ونو پاڼې، قلم، کتابچې، فلش کارتونه او نور.

**فعالیتونه:**

۱–زده کوونکي دې په پنځو ګروپونو وویشل شي هغه د لوست مرستندوی مواد چې زده کوونکو او ښوونکي تیار کړي دي، هر ګروپ دې په خپـــل میـــز بانـــدې کښیږدي او ښاغلی ښوونکی دې د کـــورنۍ دنـــدې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: له (۱–۴) پورې عددونه چې په فلـــش کارت باندې لیکل شوي دي جلاء کړئ.

دویم ګروپ: له (۵–۸) پورې عددونه چې په فلـــش کارت باندې لیکل شوي دي جلاء کړئ.

دریم ګروپ: ۷ پاڼې، او ۵ وړې ډبرې جلاء کړئ.

څلورم ګروپ: ۸ داني لرګوټي، او ۴ کتابچې جـــلاء کړئ.

پنځم ګروپ: ۷ داني قلمونه او ۸ توکه کتابچې جلاء کړئ او په میز باندې کښیږدی له لومړي ګروپ څخه څوک کولای شي له ۱ څخه تر ۸ پـــورې عددونـــه حساب کړي. له دويم ګروپ څخه څوک کولای شي له ۱ څخه تر ۳ پورې عددونه ولیکي. له دریم ګروپ څخه څوک وائي چې د ۷ عدد زیات دی که د ۸ عدد د ۴ عدد زیات دی او که د ۵ عدد؟

له څلورم ګروپ څخه څوک کولای شي ووائي چې ۴ مساوي له ۴ سره دی که لږ یا زیات دی؟

۲–لومړی ګروپ دې ووائي چې د ۷ له عدد څخـــه وروسته کوم عدد دی؟

دویم ګروپ دې ووائي له ۸ وروسته کوم عـــدد دی؟

دریم ګروپ احمد دې نه داني لرګوټي پورته کـــړي.

څلوم ګروپ زلمی دې نه کتابونه وشـــمیری، پـــنځم ګروپ محمود دې خپل نه ګوټې پورته کړي.

۳–څوک کولای شي نه شیان وښیي؟ څوک کـــولای شي نه پاڼې رسم کړي. څوک کولای شي نه شیان پـــه




هغه چارت کې چې پر تخته لګول شوی دی وښـــيي او نوم يې واخلي.

وروسته د نه عدد دې لومړئ په خپله ښوونکی د څـــو وارو لپاره په هوا، پر تختې کار وکـــړي او د هغـــه د حرکت لوری دې داسې په نظر کې ونيسي.



کله چې ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکـــو د ۹ عدد تشخیص کړئ دی، شميرې په تصـــويرونو کـــې ښودلای شي، نو د ليکلو ډول دې څو وارې په خپله د زده کوونکو په واسطه په کتابچو کې او يا پـــر تختـــه باندې مشق او تمرين کړي.

**۴–مشق او تمرين:** زده کوونکي دې د لوست د کتاب ۲۶مخ ووینې. او پاملرنه دې ورته وکـــړي. لـــومړئ ګروپ دې ووائي: په لومړی چوکاټ کې څه شي رسم شوي دي، نومونه يې واخلي ووایاست چې څو دي؟

دويم ګروپ دې ووايي: په دويم چوکاټ کې څه شی رسم شوي دي نومونه يې واخلي او څو دي؟

دريم ګروپ دې ووايي په دريم چوکاټ کې څه شـــي رسم شوي دي نومونه يې واخلي او څو دي؟

څلورم ګروپ دې ووايي: په څلوم چوکاټ کې څـــه شی رسم شوي دي نومونه يې واخلي او څو دي؟

پنځم ګروپ دې ووايي چې لومړی، دويم، دريم او څلورمو ګروپونو د کومو شکلونو نومونه واخستل.

**۵-ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونکی ډاډمن شي زده کوونکو نوی لوست زده کړئ دی او که نه؟ لاندې پوښتنې دې وکړي.

**پوهه:** څوک نه داني لرګوټې پورته کوي؟ څوک د خپل نه ټولګيوالو نومونه اخلي؟ څوک نه شيان په ټولګی کې ښيي؟ څوک خپل نه ګوتې پورته کوي؟

**مهارت:** زده کوونکي د ۹ عدد په صحيح توګه وشمېرئ، ويې لولي او ليکل يې وکړای شي. او لاندې جدول دې بشپړ کړي.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | ۷ | | ۵ | | ۳ | | ۱ |

**ذهنيت:** د ۹ د عدد په پېژندلو سره د زده کوونکو ذهنيت بدلون مومي، او د ۹ د عدد توپير له نورو عددونو سره کوي.

**ارزښت:** د ۹ د عدد په پېژندلو، او نورو عددونو سره د هغه په توپير کولو سره په ورځني ژوند کې ورڅخه ګټه واخلي.

**٦-کورنۍ دنده:** ټولو زده کوونکو ته دې دنده وسپارل شي چې د نه عدد دې، نه، نه وارې په خپلو کتابچو کې وليکي او همدارنګه د نه عدد دې له کاغذ يا د ونې له پاڼې څخه جوړ کړي.

**د لوست عنوان: صفر (۰)**

**(۲۷، ۲۸، ۲۹) مخونه، یوولسم لوست**

**وخت: د لوست درې ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه:** زده کوونکي دې وکولای شي د صفر تشخیص په واقعي توګه سره وکړي.

**اصطلاح ګانې:** صفر، (۰)

**د لوست مرستندویه مواد:** پلاستیکی کڅوړې، کاغذي پاکټونه، د زده کوونکو بکسونه، وړې ډبرې، قلم، د لوبیا دانې، د جوارو دانې او نور.

**فعالیتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکۍ دې زده کوونکي په ۴ ګروپونو وویشي، کورنۍ دندې دې ووینې او د یوه ګروپ غلطي دې د بل ګروپ په واسطه پیدا کړي او له ګروپونو څخه دې په وار سره پوښتنې وکړي.

څوک کولای شي د (۹) عدد پر تخته باندې ولیکي؟

څوک کولای شي (۹) زده کوونکي وشمیری؟

احمد دې له لرګوټو څخه ۹ دانې لرګوټي جلاء کړي.

محمود دې له ځمکې څخه ۹ دانې وړې ډبرې پورته کړي.

۲–د لرونکو موادو په واسطه په تشو کڅوړو کې په یوه کې درې دانې لوبیاوی، په بله کې دوه دانې لوبیاوي او په دریمه کې څلور دانې لوبیاوي او په وروستی کڅوړې کې هیڅ شی نه وي. زده کوونکو ته وروښیي او له هغو څخه پوښتنې وکړئ په ترتیب سره په کڅوړو کې څه شی وینئ.

لومړی ګروپ دې ووائي: په کڅوړه کې څو دانې لوبیاوي دي؟ ۳ دانې

دویم ګروپ دې ووائي په دوهمه کڅوړه کې څو دانې لوبیاوي دي؟ ۲ دانې

دریم ګروپ دې ووائي په دریمه کڅوړه کې څو دانې لوبیاوي دي؟ ۴ دانې

څلورم ګروپ دې ووائي چې په څلورمه کڅوړه کې څو دانې لوبیاوی دي؟ هیڅ شی نشته




له ګروپونو څخه دې پوښتنې وشي په ترتیب سره په کڅوړو کې څه شی وینی په همدې ډول دې کاغذي پاکټونه ترتیب کړي او د هغوی په منځ کې دې وړې ډبرې واچوي او په یوه کې دې ډبرې نه اچوي.

د ګروپ په واسطه دې وشمیرې. وروسته له شمیرلو دې ورته ووائي په هغو کڅوړو او پاکټونو کې چې شئ نشته یعنی تش دي. همدا صفر دئ.

۳–هغه کاغذي پاکټونه یا کڅوړې چې په میز باندې دي، زده‌کوونکي دې په وار سره راوغواړي هغه کڅوړې یا پاکټونه دې پیدا کړي چې په کې هیڅ شئ نشته یعنی تش دي.

۴–زده کوونکي دې د لوست د ۲۷ مخ لومړیو شکلونو او تصویرونو ته متوجه کړاي شي ترڅو تصویرونه او شکلونه ووینې، بیا دې ورته ووائي څه شیان وینی نومونه یې واخلئ، او د هغو شمېر دې وګنې او د شکلونو له مخې دې صفر وښیئي.

کوم وخت چې ښوونکی ډاډمن شو چې زده کوونکو صفر تشخیص کړی دئ، نو صفر دې پر تخته باندې وروښیئي، او ودې لیکی او تکراراً دې ورته ووائي چې صفر یوازې هیڅ شئ ده، وروسته دې صفر په خپلو کتابچو کې ولیکي او د موادو په واسطه یې مشق او تمرین کړی.



**۵–مشق او تمرین:** د لوست د کتـاب ۲۸ مـخ دې زده‌کوونکو ته وښودل شي. د یوه مثال له حل وروسته تش ځایونه دې د زده کوونکو په واسطه ډک شـي او ښوونکې دې د زده کوونکو د کار مراقبت وکـړي او په ځیر سره دې وګوري چې زده‌کوونکي صفر د تـش ځایونو په مناسب ځای کې لیکلای شي او که نـه، د لوست د کتاب ۲۹ مخ چې د عددونو او صفر پرتلـه کول دي ښاغلې ښوونکې دې د یوه مثال له حل کولو وروسته نورې پوښتنې دې د زده کوونکو په واسـطه و کارول شي.

**۶–ارزونه:** ښاغلی ښوونکې دې د خپل ځـان د ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي. کـه چیرې هغوی اشتباه وکړي ښاغلی ښوونکې دې مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:** ستاسو د کوم یو جیب تش دی؟ وواياست ستاسو د کوم یوه بکس تش دی؟ وواياست صفر زیات دی او که یو؟ احمد دې ځواب ووایي، صفر لـږ دی او کـه دوه، محمود دې ځواب ووایي.

**مهارت:** زده کوونکي دې صفر په شیانو کې وښودلای شي. او په یوازې توګه دې د صفر مفهوم وویلای شي او هم د صفر فرق د ۱، ۲، ۳، ۴، ..... ۹ عـددونو سره پیدا کړي. او پرتله دې کړای شي.




**ذهنیت:** د صفر په پېژنـدلو او پوهېـدلو سـره د زده کوونکو ذهن او فکر بدلون مومي له ریاضی سره په زړه پوری علاقه پیدا کوي.

**ارزښت:** زده‌کوونکی په یوازې توګه (ځان ته) د صـفر په ارزښت پوه شي او په ورځنی ژوند کې دې ورڅخه ګټه واخلي.

**۷–کورنۍ دنده:** زده‌کوونکي دې د ننـي لوسـت د کتاب د ۲۹مخ پاتې پوښتنې چې په ټولګي کې کار نـه دي شوي په کور کې حل او تش ځایونه دې ډک کړي او همدارنګه هر یو دې درې پاکټونه جوړ کړي چې په یوه کې یې یوه دانه، او په دویم کې دوه دانـې او پـه دریم کې هېڅ شئ نه وي له خپل ځان سره راوړي.

**د لوست عنوان: د یوه رقمي عددونو جمع**

**۳۰ مخ، دوولسم لوست**

**وخت: د لوست درې ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه:** زده کوونکي دې وکړای شي جمع د دوو همجنسو شیانو د یو ځای کولو په معنی وپیژني. او همدارنګه د جمعې په عملیه کې د + او = په نښو پوه شي او له هغو کار واخلي.

**اصطلاح ګانې:** جمع، مساوي، یو ځای کول او همجنس.

**د لوست مرستندویه مواد:** پاڼې، لرګوټي، قلم، وړې ډبرې، کتاب، کتابچې، څوکۍ او زده کوونکي.

**فعالیتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په دریو ګروپونو وویشي، د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي وروسته دې د هر ګروپ اشتباه او غلطۍ د زده کوونکو په مرسته او لارښوونه اصلاح شي. او په دې وخت کې دې له ګروپونو پوښتنې وکړي. څوک په خپل جیب کې قلم نه لري؟ څوک په خپل بکس کې ډوډۍ نه لري؟

که چیرې ستاسو په لاس کې څه شی نه وي صفر ورته ویلای شو؟ که چیرې ستاسو په لاس کې قلم وي صفر ورته ویلای شو. په همدې ډول نورې پوښتنې دې وکړي.

۲–وروسته له دوارو ګروپونو څخه یو، یو زده کوونکی راوغواړي د ټولګي په دوو ګوټونو کې دې ودرول شي. او د دریم ګروپ یوه زده کوونکي ته دې ووایي. چې هغوی دې یو بل ته نژدې یعنې یو ځای کړي.

☹ + ☹ ⟶ ☹☹

او دا حالت دې له زده کوونکو څخه وپوښتي، اوس څه وشول زده‌کوونکي دا فعالیت بیانوي چې دوه زده کوونکي سره یوځای شول. احمد ته دې ووائي چې دوه لرګوټي له یوه لرګوټي سره یوځای کړه له محمود څخه دې وپوښتي، چې اوس څو لرګوټي دي؟ درې (۳) لرګوټي، زلمي ته دې ووائي، درې پاڼې له یوې پاڼې سره یوځای کړه، له بل زده کوونکي څخه دې وپوښتي، چې اوس څو پاڼې دي؟ زده کوونکي ځواب ورکوي (۴) پاڼې، په همدې ډول د زده کوونکو په واسطه په وار سره، درې زده کوونکي، دوه زده کوونکي او یو زده کوونکی را وغوښتل شي او له هغو سره دې یو زده کوونکی یو ځای کړي، او له نورو زده کوونکو څخه دې ځوابونه تر لاسه کړي. او له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وشي څه شی مو ولیدل، څه شی له څه شي سره یوځای شول او څو داني شول، که چیرې زده کوونکي وویلای شي، ښه به شي له هغه پرته ښوونکي دې ورته ووائي: پاڼي له پاڼو سره، زده کوونکي له زده کوونکو سره، لرګوټي له لرګوټو سره یوځای شول.

په همدې ډول قلم له قلم، کتاب له کتاب، کتابچه له کتابچې، وړې ډبرې له وړو ډبرو، لوبیا له لوبیاؤو، او جوارې له جوارو سره یوځای کیږي.

۳–د زده کوونکو پام د کتاب تصویرونو ته راوګرزوي وروسته د ښوونکي په واسطه د یوه مثال حل لکه ۳=۱+۲ د + او = نښو په تکرارولو سره دې له لومړي ګروپ څخه پوښتنې وکړي، په لومړي چوکاټ کې څه شی وینې نوم یې واخلي، یو هلک د یو هلک سره یوځای شوی دئ، چې دوه هلکان شول، بل زده کوونکی دې راشي ۲=۱+۱ دې په




تخته باندې ولیکي، له دویم ګروپ څخه دې پوښتنه وکړي په دویم چوکاټ کې څه شي وینئ هغوی ځواب ورکوي، دوه مڼې له یوې مڼې سره یو ځای شوي ۳ مڼې شوې، تاسو کې کوم یو کولای شي د هغه د جمعې عملیه ولیکئ ۳=۲+۱ له دریم ګروپ څخه دې پوښتنه وکړي په دریم چوکاټ کې څه شي وینئ، نوم یې واخلي درې ناکه له یوه ناکه سره جمع شوي دي، (۴) ناکه شول، د بل زده کوونکي په واسطه دې د ۴=۱+۳ عملیه ولیکل شي که چیرې زده کوونکي د عملیې په لیکلو کې ستونزې ولري ښوونکي دې د جمعې په عملیه کې د = او + نښو مناسب ځای د جمعې په پوښتنو کې لکه ۲=۱+۱، ۳=۱+۲، ۴=۱+۳ د تختې پر مخ باندې وروښیي وروسته دې د زده کوونکو په واسطه مشق او تمرین وکړي.

**۴–مشق او تمرین:** په همدې ډول نور شکلونه او مواد دې زده‌کوونکو ته ورکړل شي چې مشق او تمرین وکړي او ښوونکي دې د زده کوونکو کارکول د څارنې لاندې ونیسي.

**۵–ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو نوي لوست زده‌کړی ده او که نه له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته وکړي.

**پوښه:** څوک کولای شي د لاندې پوښتنو په تش ځایونو کې د = او + نښې ولیکي. ۳ ☐ ۱ + ۲، ۵ = ۴ ☐ ۱

**مهارت:** زده کوونکي لاندې پوښتنې حل کړای شي، ؟=۱+۳،؟=۲+۱، ؟=۰+۲،؟=۲+۰

**ذهنیت:** د جمعې د عملیې په پوهیدو او د +، = نښو په پیژندلو سره د زده کوونکو ذهن او فکر بدلون مومي د ریاضي مضمون سره مینه پیدا کوي او خوښی خرګنده وي.

**ارزښت:** د جمعې د عملیې په پوهیدو سره د +، = نښو څخه په ورځنۍ ژوند کې ګټه اخلي.

**۶–کورنۍ دنده:** د ورکړل شوي شکلونو له مخې چې د کتاب د مخ په پای کې ورکړل شوي دي د جمعې عملیه دې ترتیب او حل دې کړي.



**د لوست عنوان: (د یوه رقمي عددونو جمع)**
**(۳۲–۳۱) مخونه، دیارلسم لوست**
**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي د جمعي عملیه په دوو طریقو (افقي او عمودي) سرته ورسوي.

**اصطلاح ګاني:** افقي، عمودي، جمع،

**د لوست مرستندویه مواد:** کتاب، قلم، کتابچې، د ونې پاڼې، لرګوټي او نور.

**فعالیتونه:**

۱–زده کوونکي دې په ګروپونو وویشل شي د هر یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. په داسې حال کې چې په اشتباه ګانو باندې ګروپونه په خپل منځ کې بحث او خبرې وکړي، ښاغلی ښوونکی دې د هغو د قناعت ورکولو او صحیح کولو په برخه کې مرسته او لارښوونه وکړي. بیا دې لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: یو زده کوونکی له دوو زده کوونکو سره څه ډول جمع کوی او څوکیږي؟

دویم ګروپ: دوه لرګوټي له یوه لرګوټي سره جمع کړئ، درې پاڼې له یوې پاڼې سره جمع کړئ.

دریم ګروپ: لاندې پوښتنې په نظر کې ونیسئ تش ځایونه ډک کړې.

■■■ = ■ + ■■ ، ۴=۱ □ ۳،
۳ □ ۲+۱، ۲= ۱ + □

څوک ویلای شي چې د جمعي افقي شکل کوم دی په پورته عملیو کې یې وښیاست.

څوک ویلای شي چې د $\begin{array}{r}۲\\+۱\\\hline ۳\end{array}$ او ۳= ۱+ ۲ په عملیو کې کومه یوه د جمعي عمودي شکل دی؟ وښیاست. که چیرې زده کوونکي یې ونشي ویلای ښوونکی دې ورته ووایي، ۴= ۱+ ۳ د جمعي د عملیې افقي شکل ده او د جمعي د عملیې $\begin{array}{r}۳\\+۱\\\hline ۴\end{array}$ عمودي شکل دئ. ښاغلی ښوونکی دې ویوښتي.

څوک کولای شي ووایي چې د دواړو شکلونو ځواب مساوي دي. او که لږ یا زیات دي؟



احمد دې ووائي (۱) او (۲) په څو طریقو جمع کولای شو، په دوو طریقو، محمود دې ووایي کومي دوې طریقې، عمودي او افقي دي.

زلمی دې دواړه طریقې پر تختې باندې ولیکي، نذیر دې د دواړو طریقو د ځواب توپیر ووایي.

ځواب: مساوي ده، ښاغلی ښوونکي دې د زده کوونکو پام د لوست د ۳۱ مخ شکل او تصویرونو ته راوګرزوي او له هر ګروپ څخه دې د چوکاټ په برخه کې پوښتنې وکړي.

**۲–مشق او تمرین:** ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د لوست ۳۲ مخ تصویرونو او شکلونو ته راوګرزوي په داسې حال کې چې لومړی چوکاټ دې دریم ګروپ ته او دوه، دریم چوکاټونه دې لومړی ګروپ ته، او دوه، دریم چوکاټونه دې، دویم ګروپ ته ورکړي چې د شکلونو له مخې په عمودي طریقه یې جمع کړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار کولو د جریان مراقبت وکړي.

**۳–ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونکی خپل ځان ډاډه کړي. له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وکړي.

**پوښه:** څوک دا پوښتنه حل وي: ?=۵+۱، دا د جمعي کومه طریقه ده؟ څوک کولای شي دا شکل په عمودي طریقې سره حل کړي.

څوک کولای شي د جمعي دا شکل ووایي، $\begin{array}{r}۲\\+۱\\\hline ۳\end{array}$ څوک دا طریقه په افقي شکل لیکلای شي؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي د جمعي عملیه په دوو طریقو د افقي او عمودي سرته ورسوي. زده‌کوونکي وکړای شي د جمعي یوه طریقه په بلې طریقې بدله کړي.

**ذهنیت:** په دوو طریقو د افقي او عمودي د جمعي د عملیې په سرته رسولو او پوهیدلو سره د زده کوونکو ذهن او فکر بدلون مومي غواړي د جمعي په عملیه کې له آسانه طریقې څخه چې د هغو دپاره ده کار واخلي.

**ارزښت:** زده کوونکي د خپلې آسانتیا لپاره په ورځنۍ ژوند کې ورڅخه ګټه اخلي.

**۴–کورنۍ دنده:** زده‌کوونکي دې د کتاب ۳۲مخ ورروستی




**د لوست عنوان: د جمعي عملیه**

**(۳۳– ۳۴) مخونه، څوارلسم لوست**

**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده‌کوونکي دې پوه شي چــې د عــددونو د ځایونو په بدلون سره د جمعې حاصل بدلون نه کوي.

**اصطلاح ګاني:** جمع، مساوي، د ځایونو بدلون.

**د لوست مرستندویه مواد:** قلم، کتــاب، کتــابچې، کاغذي کارتونه، لرګوټي، وړې ډبرې او نور.

**فعالیتونه:**

۱–زده کوونکي دې په څلورو ګروپونو وویشل شــي، ګروپونه دې دوه، په دوه د کورنۍ دندې په برخه کــې یو بل ته معلومات ورکړي او زده کوونکــو تــه دې د بحث او خبرو اجازه ورکړل شي، ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکــړي، ورروســته دې پوښــتنې وکړي.

دویم ګروپ: تاسو دوه عددونه په څو طریقــو جمــع کولای شي؟ په دوو طریقو د عمودي او افقي سره.

لومړی ګروپ: یو تن د تاسو څخه دې د ۱، او ٦ دوه عددونه په دوو طریقو د افقي او عمودي جمع کړي.

دویم ګروپ: احمد دې د ۱ او ۵ دوه عددونه په دوو طریقو د افقي او عمودي جمع کړي.

دریم ګروپ: محمود دې په وړو ډبرو کې وښــیي، او نذیر دې د هغو د ځوابونو فرق ووایي.

۲–ښاغلی ښوونکی دې دوه زده کوونکي د لــومړي




ګروپ څخه د ټولګي په یوه ګــوټ کــې او یــو زده کوونکي دې له دویم ګروپ څخه د ټولګي پــه بــل ګوټ کې ودروي. او یو بــل زده کــوونکي تــه دې ووایي، چې هغه یو له بل سره جمع (یوځای) کړي، څو زده کوونکي شول، ۳ زده کوونکي.

☹☹☹ ⟶ ☹ ☹☹

د ځایونو په بدلولو سره دې یو زده کوونکۍ د دوو زده کوونکو په ځای کې او دوه زده کوونکي دې د یوه زده کوونکي په ځای کې ودروي.

☹☹☹ ⟶ ☹☹ ☹

بیا دې یو بل تن ته، ووایي چې هغه دې جمع (یوځای) کړي بیا دې پوښتنه وکړي چې اوس څو زده کوونکي شول؟

۳ زده کوونکي، او په ټولګي کې له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وشي چې دواړه ځوابونه سره مساوي دي؟ او که فرق لري، زده کوونکي به ووایي دواړه مساوي دي. په همدې ډول دې دوه کتابونه احمد ته چــې د دویم ګروپ دئ او د دریم څخه محمود ته ۳ کتابونه ورکړي او بیا دې هغوی دواړه خپل کتابونه یو بل زده کوونکي زلمي ته ورکړي، او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي چې د زلمي په لاس کې څو کتابونه دي؟ هغوی وائي ۵ کتابونه،ولې؟ درې کتابونه، یې له محمود او دوه کتابونه یې له احمد څخــه واخســتل چــې ۵ کتابونه شول. د کار یا کتابونو د ځایونو په بدلون سره

احمد ته ۳ کتابونه او محمود ته دوه کتابونه ورکړي او هغوی دې بیا خپل کتابونه زلمی ته ورکړي، بیا دې پوښتنه وکړي.

اوس د زلمي په لاس کې څو کتابونه دي؟ ۵ کتابونه.

په همدې ډول دې نور فعالیتونه د لرونکو کارتونو او نورو موادو سره د زده کوونکو په واسطه کار وشي.

او ښوونکي دې پر تختې باندې هغوی ته ولیکی او ورته و دې وائې د ۱ + ۲ او ۲ + ۱ د جمعې حاصل عیني عدد دئ، او همدارنګه ۳ + ۲ او ۲ + ۳ عینی جواب راکوي. د زده کوونکو پام دې د کتاب ۳۳ مخ شکل او تصویرونو ته را وګرزوي، لومړی ګروپ دې د لومړې چوکاټ د شکلونو او تصویرونو په برخه کې، او دویم ګروپ دې د دویم چوکاټ د شکلونو او تصویرونو په برخه کې او دریم ګروپ د دریم چوکاټ د شکلونو او تصویرونو په برخه کې، او همدارنګه څلورم ګروپ دې د څلورم چوکاټ د شکلونو او تصویرونو په برخه کې کار وکړي.

**۳–مشق او تمرین:** وروستۍ یا ۳۴ مخ پوښتنې چې د زده کوونکو لپاره مشق او تمرین دئ په دو وګروپونو باندې وویشل شي او د ښوونکي په واسطه دې د یوه مثال له حل کولو وروسته، تش ځایونه د زده کوونکو په واسطه ډک شي او ښوونکئ دې د کار کولو له جریان څارنه وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۵–ارزونه:** د دې دپاره چې ښوونکی خپل ځان ډاډه کړي له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي او د ستونزو د شتوالې په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:** څوک د ۷ = □+ ۱ او ۷ = ۱ + □ پوښتنې په عملي توګه حلوي، زده کوونکي د ۵ + ۱ او ۱ + ۵ د جمعې د حاصل فرق ویلای شي؟

**مهارت:** زده کوونکي دې د ☹☹ + ☹☹☹☹ او ☹☹☹☹ + ☹☹ جمعې حاصل ولیکی، او همدارنګه د ۲ پاڼو + ۴ پاڼو او ۴ پاڼو + ۲ پاڼو د جمعې حاصل دې ولیکی او د دواړو د جمعې حاصل دې په عملي توګه وښودلای شي.

**ذهنیت:** د جمعې د اجزاؤ د ځایونو د بدلون په پوهېدو سره د زده کوونکو په ذهن کې بدلون رامنځ کیږي چې د داسې عملیو په سرته رسولو سره خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي د جمعې په عملیه کې یو نوي میتود زده کوي په ورځنۍ ژوند کې ورڅخه ګټه اخلي.

**٦–کورنۍ دنده:** د لاندې پوښتنو تش ځایونه ډک کړئ.

۹ = □ + ۵      ۹ = □ + ۳

□ = ۵ + ۴      ۹ = ٦ + □

**د لوست عنوان: مشق او تمرين**

**(۳۵- ۳٦- ۳۷) مخونه**

**وخت:** درې ساعته د لوست (۴۵ دقيقه یې)

**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي د مشق او تمرين پوښتنې حل کړي ترڅو تېرلوستونه د زده کوونکو په ذهن کې ځاي ونيسي.

**اصطلاح ګاني:** جمع، مساوي، تش ځايونه، کوچنی او لوي.

**د لوست مرستندويه مواد:** چارتونه چې په هغو کې د مساوي نښه، تش ځايونه <،> جوړ شوي نښې، قلم، کتابچې او نور.

**فعاليتونه:**

۱-ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وويشي، د يوه ګروپ کورنی دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي او ګروپونه دې په خپل منځ کې آزاد بحث او خبري وکړي.

او ښوونکی دې په لازم ځای کې لارښوونه وکړي. د لومړي ګروپ څخه دې احمد ۱+۳ او ۳+۱ حل کړي. او محمود دې ووائي په پوښتنو او ځوابونو کې کوم توپير شته. نصير دې ووائي په ځوابونو کې کوم يو زيات دی؟

دويم ګروپ لطيف دې په ۵= ۲ ☐ ۳ او ۵ = ☐+۲ پوښتنو کې تش ځايونه په مناسبو نښو او عددونو سره ډک کړي.

دريم ګروپ: د جمعي د عمليې په لومړي او دويم پوښتنو کې تش ځايونه يو له بله څه توپير لري؟

ځواب: د تشو ځايونو، ځاي بدلون کړی دی.

څلورم ګروپ: ☐ + ۲ = ٦ او ۲ + ☐ حل کړي.

او نور زده کوونکي دې اشتباه ګانې اصلاح کړي.

۲-وروسته دې د زده کوونکو پام د لوست د مشق او تمرين ۳۵ مخ ته راوګرزوي يو او يا دوه پوښتنې دې حل کړي لکه ۸ = ۵ + ۳




☹☹☹ +☹☹☹☹☹ = ☹☹☹☹☹☹☹☹

او يا ۸ = ☐ + ۵

☹☹☹☹ + ☐ = ☹☹☹☹☹☹☹☹

پاتې پوښتنې دې د زده کوونکو په واسطه پر تختې باندې وکار وي. او اشتبا ګانې دې د نورو ټولګيوالو په واسطه اصلاح شي او په بل وروستی مخکې دې هم د ۹=۴ + ۵ او ۹ = ☐+۲ پوښتنې د ښوونکي په واسطه حل شي.

☺☺☺☺☺ + ☺☺☺☺ =☺☺☺☺☺☺☺☺☺

☺☺☺☺☺☺☺☺☺ = ☐+ ☺☺ پاتې پوښتنې دې په ګروپي ډول د زده کوونکو په واسطه، په وار سره پر تختې باندې کار وشي د کتاب په ۳۷ مخ کې د

۸ ☐< ۴ ← ۸ ☐ ۲ + ۲

۵ ☐> ٦ ← ۵ ☐ ۲ + ۴

مشق او تمرين پوښتنې د ښوونکي په واسطه لارښوونه وشي. پاتې پوښتنې دې په وار سره د زده کوونکو په واسطه کار وشي، د ستونزو په صورت کې دې لارښوونه او مرسته وشي.

**۳-ارزونه:** د دې دپاره چې ښوونکئ خپل ځان ډاډه کړي له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

مرسته او لارښوونه دې ورسره وشي.

**پوهه:** څوک شي د ۸ ☐ ۲+۳ او

۸= ☐ +۵ پوښتني حلوي؟

**مهارت:** زده کوونکي د ۷ ☐ ۵ + ۳ پوښتنه حل او

په صحیح توګه پرتله کړای شي.

د ۵ = ۳ ☐ ۲ پوښتنه صحیح حل کړای شي؟

**ذهنیت:** زده کوونکي د جمعي د پوښتنو له حل کولـو

او پرتله کولو خوښي ښکاره کوي او په ذهن او فکـر

کې یې بدلون منځ ته راځي.

**ارزښت:** د جمع کولو او پرتله کولو په پوهیدو سـره

زده کوونکي کولای شي په خپلو ورځنیو ستونزو کـې

ګټه ورځخه واخلي.

**۴–کورنۍ دنده:** لاندې پوښتني حل کړئ؟

۷ ☐ ۳+۴

۴+۳ ☐ ۷

۳+۲ ☐ ۵+۱

۳+۲ ☐ ۵+۱

۷+۱ ☐ ۴+۱




**د لوست عنوان:** د یوه رقمي عددونو تفریق له یوه رقمي عدد څخه (۳۸– ۳۹) مخونه

**دري د لوست ساعتونه**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي دوه هم جنس شیان یو لــه بله تفریق کړي، د – او = نښو څخه دې په مناسب ځایونو کې کار واخلي.

**اصطلاح ګاني:** تفریق، مساوی، لږ.

**د لوست مرستندویه مواد:** پنسلونه، د لوبیا داني، د جوارو داني، زده کوونکيُ قلم، کتابچې او نور.

**فعالیتونه:**

۱–زده کوونکي دې په ۳ ګروپونو وویشل شي. او کورنی دنده دې په وار سره ولیدل شي اشتباه ګانې دې پر تختې بانـدې ولیکل شي که چېرې اشتباه ګانې یو ډول نه وي په خپلــه د زده کوونکو په واسطه دې حل او کار وشي. او که چیــرې یو ډول وي ښوونکی دې په صحیح توګه حل او کار وکړي بیا دې له زده کوونکو څخه په لاندې ډول پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: احمده! د ۷ □ ۳+۴ په تش ځای کې کومــه نښه ایښودل کیږي. ترڅو پوښتنه صحیح شي ؟ د = نښه.

دویم ګروپ: نذیره! د ۶ □ ۲+۳ په تش ځای کې کومــه نښه ایښودل کیږي ترڅو پوښتنه صحیح شي؟ د «>» نښه.

دریم ګروپ: محمود دې ووایي د ۵ □ ۴+۳ په تش ځای کې کومه نښه ولیکل شي؟ ترڅو پوښتنه صحیح کـــړي ؟ د «<» نښه. په همدې ډول نورې پوښتنې دې وشي.

۲–بیا دې ښاغلی ښوونکی ۵ زده کوونکي له یوه ګروپ څخه د ټولګي ومخې ته راوغواړي او ودې دروي، د بـــل ګروپ یوه زده کوونکي ته دې ووایي: چې هغه څـــو زده کوونکي دي؟ هغه ځواب وایي ۵ زده کـــوونکي، بیــا دې ورته ووائي د هغوئ څخه یو تن کم کړه.نو دهغوئ څخه دې یو تن بېرته په خپله څوکۍ کښیني. له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي چې څه وشول؟هغوی ځواب ورکوي پنځه تنه ؤ، یو تن له هغو څخه ولاړ په خپله څوکۍ کیناست.

نو اوس څو تنه دي، (۴) تنه پاتې شول. بیبا دې بل ګروپ ته ووائي چې له همدې ۴ زده کوونکـــو څخــه یـــو زده کوونکی لږ کړي، له بل زده کوونکي څخـــه دې پوښـــتنه وکړي یو زده کوونکی چې لږ شو او پـــه خپلــه څـــوکۍ کیناست. او س څو زده کوونکي پاتې شول؟

هغه ځواب ورکوي، ۳ زده کوونکي په همدې ډول دې یو،




یو زده کوونکي لږ کړي او فعالیتونه دې سرته ورسوي، او همدارنګه دې پنسـلونه پــه میــز بانـدې کېښــېږدي او زده‌کوونکي دې په وار سره راوغواړي، یو، یو دانه پنســل دې لږ کړي. او ځوابونه دې له زده کوونکو څخه پــه لاس راوړي. او همدارنګه له څو دانو لوبیاؤ، د جوارو له دانو څخه، دې په ترتیب سره د زده کوونکو په واسطه یوه، یوه دانه لږ کړي، کوشش دې وشي چې له زده کوونکو څخـــه ځوابونه پیدا او په لاس راشي.

۳–د زده کوونکو پام دې د کتاب ۳۸مخ ته راوګرزوي. د ۴=۱–۵ او ۲=۱– ۳ مثالونه دې د کتاب د شـــکلونو او تصویرونو له مخې زده کوونکو ته ور زده کړي. او د (–)، (=) نښو مناسب ځایونه دې هغو ته وروښیي، او ورته ودې وایي پام وکړي چې تل له قلم څخه قلم، له کـــوګرو څخه کوګر، له کتاب څخه کتاب تفریق کیږي.

۴–**مشق او تمرین:** د کتاب ۳۹ مـــخ یعنـــي د ۲=۲–۴ لومړی مثال چې په لومړي چوکاټ کې دی د ښوونکي پــه واسطه دې پر تختې باندې کار وشي، بیا دې د لوست د مخ پوښتنې د زده کوونکو په واسطه کار وشي په داسې حـــال کې چې دویم چوکاټ دې لومړی ګروپ ته، دریم چوکاټ دې دویم ګروپ ته، او څلورم چوکاټ دې دریم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو حل یې کړي.

۵–**ارزونه:** ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کـــې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**څوک د لاندې پوښتنو په تشو ځایونو کې مناسبه نښه لیکي؟ ۲ □۴– ۶، ۱ =۳□ ۴، ۵=۲ □ ۷

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي.
?= ۲ –۶، ?= ۳– ۵، ?= ۲ –۴ ، ?= ۱– ۳

**ذهنیت:** د تفریق د عملیې په پېژندلو او پوهیدو سره د زده کوونکو ذهنیت او فکر بدلون مومي. د دې نوي عملیې پــه زده کولو خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:** د تفریق د عملیې پوهېدل دا ګټه رسوي چې هغـــو په ورځنی ژوند کې کار ورڅخه اخلي.

**کورنی دنده:** زده کوونکي دې د ۳۹ مخ وروستي چوکاټ تصویرونه ووینې او د هغو له مخې دې د تفریق عملیه سرته ورسوي.




**د لوست عنوان: د یوه رقمي عدد تفریق له یوه رقمي عدد څخه (۴۰- ۴۱) مخونه**

**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي د تفریق عملیه پــه دوو طریقو د (افقي او عمودي) سرته ورسوي.

**اصطلاح ګانې:** تفریق، عمودي، افقي.

**د لوست مرستندویه مواد:** کتاب، قلم، کتابچې، دونو پاڼې، کارتونه، زده کوونکي او نور.

**فعالیتونه:**

۱-زده کوونکي دې په ۳ ګروپونو وویشــل شــي. د یــوه ګروپ کورنۍ دندې دې د بل ګروپ په واسطه ولیدل شي په اشتباه ګانو باندې دې په آزاده توګه بحث او خبرې وکړي، او ښاغلی ښوونکی دې د پوښتنو په صــحیح کولــو، او زده کوونکو ته قناعت ورکولو په برخه کې مرسته او لارښــوونه وکړي وروسته دې لاندې پوښتنې وکړي.

لومړي ګروپ: له ۳ زده کوونکو څخه یو زده کوونکی کم کړئ، څو زده کوونکي پاتې کیږي؟ ۲ زده کوونکي.

دویم ګروپ: له ۵ کتابونو څخه یو کتاب تفریق کړئ څــو کتابونه پاتې کیږي؟ ۴کتابونه.

دریم ګروپ: د لومړي ګروپ او دویم ګروپ کار د شکلونو په مرسته دې پر تختې باندې ولیکي.

۲=۱ -۳ او ۳= ۲-۵، وروسته دې په جلاء شکل پوښتنې وکړي. څوک کولای شي لاندې تش ځایونه ډک کړي. پــه وار سره.

□=۲- ۳ ، ۱=□- ۳، ۳ □۱- ۴ او ۲=۱□ ۳

۲-څوک کولای شي چې ووائي ۲=۱- ۳ او

۳
−۱
―――
۱

یو له بله سره څه توپیر لري؟

څوک کولای شي ووائي، چې د تفریق افقي شکل کوم دئ؟ په یوه پوښتنه کې یې وښیئي، څوک کولای شي ووایي چې د تفریق عمودي شکل کوم دي؟ په یوه پوښتنه کې یې وښــیئي، که چیری زده کوونکي ونشي ویلای ښــوونکی دې مرســته وکړي، چې ۲=۲- ۴ د تفریق افقي شکل دئ او

۳
− ۲
―――
۱

د تفریق عمودي شکل دئ وروسته دې ښوونکی پوښتنه وکړي څوک کولای شي ووائي: چې د دواړو شکلونو ځواب سره مساوي دې، که لږ او یا زیات دي؟

احمد دې ووائي د ۳ له عدد څخه د ۱ عدد په څو طریقــو تفریق کولای شو؟ په دوو طریقو، محمود دې ووائي کــومې دوه طریقې، عمودي او افقي، صابر: دواړه طریقې پر تختــه




باندې ولیکي. په همدې ډول نذیر دې د ۵ له عدد څخه د ۲ عدد په دوو طریقو چې ورباندې پوهیږي تفریق کړئ.

که چیری نذیر ستونزې ولري د نورو زده کوونکو په واسطه دې ځواب ترلاسه کړي. او پرته له هغه د ښاغلی ښوونکي له خوا دې مرسته او لارښوونه وشي.

وروسته له هغه دې د زده‌کوونکو پام د لوســت د کتــاب ۴۰مخ ته راوګرزوي. د ۴=۲− ۴ او

۴
− ۲
―――
۲

د مثالونو په حل سره دې، نورې پوښتنې په ګروپونو باندې وویشل شي او د زده‌کوونکو په واسطه دې حل او کار وشي.

**۳-مشق او تمرین:** د لوست د کتاب یعنې ۴۱مخ چــې د جمعې او تفریق مشق او تمرین دې ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب مخ ته راوګرزوی د دې مثالونو په حــل سره ۵=۳+۲ او ۳=۲-۵، ۵=۲+۳ او ۲=۳-۵ چې پــه حقیقت کې د جمعې او تفریق په منځ کې یوه رابطــه ده زده کوونکو ته دې حل کړي او پاتې پوښتنې د زده کوونکو پــه واسطه حل او کار وشي. او ښوونکی دې د کــار د جریــان څارنه وکړي.

**۴-ارزونه:** د دې دپاره چې ښوونکی خپل ځان ډاډه کړي له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي. د ستونزو په صــورت کې دې د هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوښته:** څوک ۲=۳-۵ په عمودي شکل لیکي؟

څوک کولای شي

۴
- ۲
―――
۲

په افقي شکل ولیکي؟

**مهارت:** زده‌کوونکي وکړای شي د تفریق عملیــه پــه دوو طــریقو افقي او عمودې سرته ورسوي. او همدارنګه ۱=۵-٦ په عمودې شکل، او

۵
− ۲
―――
۳

په افقي شکل بدل کړي.

**ذهنیت:** زده کوونکي د تفریق د عملیې په دوو طریقو د افقي او عمودې په پوهېدو او سرته رسولو سره یو نوی ذهــن او فکر پیدا کوی او هڅه کوي چې په تفریق کولو کې له آسانه طریقې څخه چې د هغوی دپاره ده کار واخلي.

**ارزښت:** زده کوونکي د تفریق د آساني طریقې په پوهیدو سره په ورځنۍ ژوند کې کار اخلي.

**۵-کورنۍ دنده:** په لاندې پوښتنو کې تش ځایونه ډک کړي.

□ =۲−۳
□ =۱−٦
□ =۵+۱

۳
− ۲
―――




**د لوست عنوان: د صفر جمع کول له یوه عدد سره (۴۲– ۴۳) مخونه، اووه لسم لوست**

**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي په جمع کې د صفر په ارزښت پوه شي.

**اصطلاح ګاني:** صفر، ارزښت، جمع.

**د لوست مرستندويه مواد:** کتاب، قلم، کتابچې، پلاستيکي کڅوړي، کاغذي پاکټونه، زده کوونکي او نور.

**فعاليتونه:**

١–ښاغلی ښوونکی دې، زده کوونکي په ۳ ګروپونو وويشي د يوه ګروپ کورنۍ دندې دې د بل ګروپ په واسطه وليدل شي په اشتباه ګانو باندې دې ګروپونه په آزاده توګه بحث او خبرې وکړي. که چيرې زده‌کوونکي يو بل ته صحيح ځواب نه شي ويلای، ښوونکی دې صحيح ځوابونه ووايي، او وروسته دې لاندې پوښتنې وکړي.

لومړي ګروپ: د ۵ له عدد څخه کوم عدد تفريق شي ترڅو د ۳ عدد پاتې شي؟

دويم ګروپ: د ۵ له عدد څخه چې د ۲ عدد تفريق شي څو پاتې کيږي؟ د ۳ عدد.

دريم ګروپ: که چيرې ۳ له ۲ سره جمع کړو څو کيږي؟ ۵ کيږي.

لومړی ګروپ: که چيری ۲ له ۳ سره جمع کړو د جمعې حاصل يې څو کيږی؟ ۵ کيږي.

وروسته لاندې پوښتنې دې په جلاء، جلاء توګه، په وار




سره د زده کوونکو په واسطه کار وشي.

۲ + ۴ =؟ ، ۶ − □ =۴ ، ۴ + □ =۶

۶ − □ =۲ ، ۲ + □ =۶

په همدې ډول نوري پوښتنې دې وکړي.

۲– ښاغلی ښوونکی دې يوه زده کوونکي ته ۳ دانې قلمونه ورکړي او زده کوونکی دې د ټولګی مخې ته راوغواړي وروسته تش لاس چې قلم په کې نه وي، زده کوونکي ته دې وړاندې کړي، او هغه ته دې ووايي، دا قلم هم واخله، او له هغه دريو قلمونو سره يې جمع کړه ښايي زده کوونکی ورته ووايي چې په لاس کې دي څه شی نشته، همدا صفر دی.

نورو زده‌کوونکو ته دې ووايي، صفر له ۳ سره جمع شوی دي ويې شميرئ څو کيږي.

زده‌کوونکي وينې او ورته وائي ۳ کيږي، ښوونکی دې ۳ پلاستيکې کڅوړې له خپل ځان سره ولري چې ديوې په منځ کې يې ۴ دانې لوبياوې، او په بله کې هيڅ شئ نه وي، همدا چې شئ نشته، څه ورته وايي؟ که چيرې زده کوونکي ونشي ويلای ښوونکی دې ووايي، صفر ده. او يوه زده کوونکي ته دې ووايي راشه د دې دوارو کڅوړو لوبياوي په يوه دريمه پلاستيکې کڅوړه کې تشې کړه، زده کوونکی راځي دواړه کڅوړې په يوه دريمه کڅوړه کې تشه وي وروسته له زده کوونکو څخه دې پوښتني وکړي، چې اوس په دريمه پلاستيکې کڅوړه کې څو دانې لوبياوي دي؟ هغوی ځواب وايي، ۴ دانې لوبياوی، وروسته ښوونکی دې د ۳=۰+۳، ۴=۰+۴، ۳=۳+۰ او

۴=۴+۰ پر تختې وليکي او هغوی ته دې ور زده کړي او د زده کوونکو پام دې د کتاب د پام وړ مخ ته راوګرزوي. د کتاب د شکلونو او تصويرونو له مخـې دي ۵=۲+۳ او ۵=۱+۴ يـا ۳=۰+۳ او ۵=۵+۰ زده کوونکوتـه ور زده کړي، او نورې پوښتني دې په وار سره د ګروپونو په واسطه حل او کار وشي. د ستونزو په صورت کې دې ښـوونکی لارښوونه وکړي په داسی حال کې چې دريم چوکاټ دې لومړی ګروپ ته، څلورم چوکاټ دې دويم ګـروپ تـه، ۴ چوکاټ دې ۳ ګروپ ته ورکړل شي.

**۳–مشق او تمرين:** په ۴۳مخ کې چې د جمعې او تفريق د عمليو مشق او تمرين دی پوښتنې دې ګروپونو ته ورکړل شي او د زده کوونکو په واسطه دې حل شي ترڅو تش ځايونه د زده‌کوونکو په واسطه ډک شي او ښاغلی ښـوونکي دې د کار کولو په وخت کې څارنه وکړي.

**۴–ارزونه:** ښاغلي ښوونکي دې د ځان د ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو د شتوالې پـه صورت کې دې هغوی ته لارښوونه وکړي.

**پوهه:** څوک کولای شي د ۲= ☐ –۵ او

 ۴
 - ۴
 ☐ حل کړي.

**مهارت:** لاندې پوښتني حل کړئ.

☐ = ۰ – ٦، 
 ۲
 - ۰
 ☐

**ذهنيت:** زده کوونکي دې له صفر سره د جمع د عمليې سرته رسولو او پوهېدو باندې خوشحاله کيږي په ذهن او فکـر کې يې بدلون راځي. له دې ډول پوښتنو سره مينه پيدا کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي د دې پوهې په اخستلو سره په ورځني ژوند کې ګټه اخلي.

**کورنی دنده**زده‌کوونکي دې لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړي.

۷+۰=? ۰+۸ =?

 ۳
 + ٤

۸– ☐ =۸

**د لوست عنوان: د يوه عدد څخه د صفر منفي کول**

**(۴۴– ۴۵) مخونه، اتلسم لوست**

**وخت: د لوست دري ساعتونه (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي چې صفر له يوه عدد څخه تفريق کړي او باقي دې حساب کړي.

**اصطلاح گاني:** صفر، تفريق، باقي.

**د لوست مرستندويه توکي:** د ونې پاڼې، کاڼي، قلم، پلاستيکي کڅوړې، کاغذي پاکټونه، زده‌کوونکي او نور.

**فعاليتونه:**

۱–ښوونکي دې زده کوونکي په درو گروپونو وويشي. د يوه گروپ کورني کارونه دې د بل گروپ له خوا وکتل شي. د اشتباهگانو په صورت کې دې ښوونکی د هغوی سره مرسته وکړي او لارښوونه دې ورته وکړي. بيا دې لاندې پوښتنې د زده کوونکو څخه وپوښتي.

لومړي گروپ دې د ?=۰+۷ او ?=۸+۰ سوالونه حل کړي.

دويم گروپ دې د ۴= ۴+☐ او ۵= ☐+ ۵ سوالونه حل کړي.

دريم گروپ دې د ?=۰+۳ او ۷= ۷+☐ سوالونه حل کړي.

د لومړي گروپ څخه دې احمد ووايي صفر چې د ۸ سره جمع شويدی څو زيات شول؟ ۴ دي.

د دريم گروپ نه دې زلمي ووايي ۲ چې د ۴ سره جمع شي څو کيږي؟ په همدې ډول دې ښوونکی نورې پوښتنې وکړي.

۲– ښوونکی دې پنځه زده کوونکي د ټولگي مخې ته ور وغواړي. دوه زده کوونکي دې ورڅخه کم کړي، زده کوونکو ته دې ووايي چې د پنځو زده کوونکو څخه چې دوه زده کوونکي کم شي، څو زده کوونکي پاتې کيږي؟ ۳ زده کوونکي پاتې کيږي. بيا دې درې زده کوونکي(احمد، محمود، نذير) د ټولگي مخې ته وروغواړي ودې دروي ودې وايي چې زلمی دې له درو زده کوونکو څخه کم شي. له زده کوونکو څخه دې وپوښتي چې کله چې زلمی کم شو، ويې شماري چې څو زده کوونکي وينئ او څوک دي، زده کوونکي يې شماري او وايي چې ۳ زده کوونکي چې (احمد، محمود او نذير) دي، ولې نه دي کم شوي. که چيرې زده کوونکي ځواب ورنکړای شي نو ښوونکی دې ووايي ځکه چې زلمي موجود نه ؤ نو صفر کم شويدی. په همدې ډول دې د بل زده کوونکي نه پوښتنه وکړي چې که چيرې پخپل جيب کې افغاني ولري او بازار ته ولاړ شي او هيڅ شئ وانه خلي نو څو افغاني بايد ورسره وي؟

زده کوونکی وایي چې پنځه افغانۍ. نو څو دې مصرف کړېدی؟ هیڅ.

بیا دې ښوونکی د ۳=۰−۳ او ۵=۰−۵ پر تخته باندې ولیکی او د یوه عدد څخه د صفر کمول دې هغوی ته ور زده کړي. زده کوونکی دې ۴۴ مخ د لومړی صفحې ته متوجه کړي. د ۳=۴−۷، ۷=۰−۷ مثالونواو یا ۶=۰−۶ او ۴=۰−۴ په حل سره دې نور پاتې سوالونه په ګروپي شکل په زده کوونکو باندې حل شي د ستونزو د موجودیت په صورت کې دې مرسته ورسره وشي او لارښوونه دې ورته وکړي .

**۳−مشق او تمرین:** زده کوونکي دې ۴۵مخ ته متوجه کړي. د زده‌کوونکو د ذهن د پرمختګ او د دې لپاره دې پوښتنې یا سوالونه ورکړل شي د دې مثالونو په حل او تشریح کولو سره دې دا مثالونه:

۸ + ۰ = ?    او    ۱ + ۵ = ?

۷، ۶، (۸)    (۶)، ۸، ۷

او هم نور سوالونه په زده‌کوونکو باندې کار وشي. د درو ورکړ شوو ځوابونو څخه دې، د هغوی سم ځواب پیدا کړي او پخپلو کتابچو کې دې په صحیح ځواب باندې دایره را وڅرخوي. ښوونکۍ دې د کار د جریان څخه مراقبت او څارنه وکړي لکه پدې ډول چې: لومړی چوکاټ د لومړی ګروپ لپاره، دویم چوکاټ د دویم ګروپ لپاره، دریم چوکاټ د دریم ګروپ لپاره او څلوم چوکاټ دې د تکرار په ډول له زده کوونکو څخه پوښتنه وشي.

**۴−ارزونه:** ښوونکۍ دې د ځان د مطمین کیدو لپاره د زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي. د ستونزو د موجودیت په صورت کې دې د هغوی سره مرسته وکړي او لارښوونه دې ورته وشي.

**پوهه:** څوک کولۍ شي چې لاندې پوښتنې حل کړئ؟

۵ − □ = ۵    ۵ + □ = ۵    ۴ − □ = ۴    ۶ − □ = ۲

**مهارت:** زده‌کونکي لاندې پوښتنې حل کړای شي.

□ = ۰ − ۶ ،    ۵= ۰ − □    ۷ − □ = ۷

**ذهنیت:** د یوه عدد څخه د صفر په کمیدو او په پوهیدو سره، د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راځي او د دغه نوی مفهوم په زده کولو سره، د ریاضی د مضمون سره دلچسپی او مینه پیدا کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي دې د لوست د نوې موضوع په زده کولو سره له خپلې پوهې څخه ګټه واخلي او پخپل ورځنی ژوندانه کې دې له هغې څخه کار واخلي.

**۵−کورنۍ دنده:** لاندې پوښتنې حل او په درکړل شوو عددونو کې صحیح ځواب پیدا کړي؟

۱+۸=    ۲+۵=

۷ ۸ ۹    ۷ ۶ ۵

**د لوست عنوان: مشق او تمرین**

**(۴۶- ۴۷- ۴۸) مخونه**

**وخت: درې (۴۵ دقیقه یې) ساعتونه**

**هدفونه:** زده کوونکي دې د تفریق په مشق او تمرین، د جمعې او تفریق مشق او تمرین او د عددونو په شـمیرلو باندې وپوهیږي.

**اصطلاح ګاني:** جمع، تفریق او شمېرل.

**د لوست مرستندویه توکی:** کتاب، قلم، د لوبیا دانــې، جوار، زده کوونکي او داسې نور.

**فعالیتونه:**

۱-ښوونکی دې زده کوونکي په دریو ګروپونو وویشي. دیوه ګروپ کورنۍ کار دې د بل ګروپ له خوا ولیدل شي، د هر ګروپ اشتباهګانې دې پر تخته باندې ولیکل شي. وروسته دې بحث او مذاکره وشي. ښــوونکی دې لارښوونه وکړي او لاندې پوښــتنې دې وکــړي. دوه کاغذي پاکټونه دې چې په یوه کې د لوبیا دانــې وي او بل تش وي، د ځانه سره ولري.

لومړي ګروپ: دوه پاکټونه چې په یوه کې یې درې دانې لوبیاوې او بل یې تش وي، وښيې.

دویم ګروپ: په ټولګي کې دې درې چوکۍ چې په هغو باندې زده کوونکي ناست نه وي، وښه یې. که چېـــرې زده‌کوونکي ونه توانېدل، نو ښوونکی دې ځواب ووايي.

دریم ګروپ دې د ۵= ۰ - ۵ او ۶=۰-۶ سوالونه د موادو په واسطه حل کړي. بیا دې داسې سوالونه لکه:

۴= □ - ۴ ، ۳= ۰ - □

۷ = □ - ۷، □= ۰ - ۸

د زده کوونکو په واسطه پر تخته باندې حل کړي.

۲-ښوونکی دې د د کتاب ۴۶ مخ د تفریق د مشق او تمرین سوالونه زده کوونکو ته وروښــيي او د لــومړی چوکاټ پوښتنې دې پر تخته باندې حل کړي او دوی ته دې ووايي چې: هرې پوښتنې ته درې ځوابونه ورکــړل شویدي

$$\begin{array}{r} 8 \\ -3 \\ \hline \end{array} \qquad \begin{array}{r} 7 \\ -5 \\ \hline \end{array}$$

۴، (۵)، ۶ ۵، ۳، (۲)



چې د هغوی څخه یوېې صحیح دئ او په هغــې بانــدې دایره را څرخول شویده. د دې مــخ ســوالونه دې پــه ګروپونو باندې وویشل شي. دوه لومړی چوکاټونـــه دې لومړی ګروپ دوه دویم چوکاټونه دې دویم ګــروپ، دوه دریم چوکاټونه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي. او څلورم چوکاټ دې په جلا جلا توګه پــه زده کوونکــو باندې کار وشي ترڅو زده کوونکي سم ځواب پیدا کړي او پر هغه باندې د حل شوی مثا ل پــه ډول دایــره را وڅرخوي. او راتلونکي دویمه صفحه دې چې جمــع او تفریق دې ښوونکي دې د ۹=۱+۸ او ۳=۳-۶ مثالونه پر تخته باندې حل کړي. پــاتې ســوالونه دې د دریــو ګروپونو ترمنځ وویشي او د زده کوونکو په واسطه دې حل او کار دې پرې وکړي. د ستونزو د موجودیت پــه صورت کې دې ښوونکی مرسته او لارښــوونه ورســره وکړي. د کتاب ۴۸مخ چې د لوبیا د دانو پــه واســطه توري جوړ شویدي. بیا دې یو ښه مثال ښــوونکی حــل کړي. ګروپونو ته دې هدایت ورکړي چې د لوبیا د دانو څخه او یا د جوارو څخه د ب، د، و، ن او ک توري او هم دې د ۲، ۵، او ۷ رقمونه پخپلــه جــوړ کــړي. ښوونکۍ دې د کار د جریان څخه څارنه وکړي.

**۳-مشق او تمرین:** بیا دې دغه مثال ⁂ چې د ت توری دې د اتو دانو لوبیا په واسطه جوړ کــړي او د



هدف: دجمعې اوتفریق مشق اوتمرین.

| | |
|---|---|
| ٥ + ٢ = | ٨ + ١ = |
| ٣ + ٠ = | ٦ - ٣ = |
| ٨ - ٨ = | ۴ + ٥ = |
| ٩ - ٠ = | ٧ + ٢ = |
| ٦ + ٣ = | ٩ - ٢ = |
| ٧ - ١ = | ٧ - ٢ = |
| ٥ + ٣ = | ٥ + ٢ = |
| ٦ - ١ = | ٦ + ٢ = |
| ۴ + ٢ = | ٨ + ١ = |
| ٠ + ٥ = | ٦ - ۴ = |

ښاغلی ښوونکی دجمعې او تفریق دعملیو مشق اوتمرین دپاره پوښتنې دزده کوونکو په واسطه حل او کاروکړئ.

۴٧

٨ عدد پر شاوخوا دې دایره وکاږي. زده کوونکي دې هم په هر ټکی کې د لوبیا داني وشمېري او د سم توري پر شـــاوخوا دې دایـــره را وڅرخـــوي. کـــه چیـــرې زده کوونکي ستونزې ولري، ښـــوونکی دې مرســـته او لارښوونه ورته وکړي.

**۴–ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونکی ځان مطمـــین کړی وي، له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکـــړي. د ستونزو د موجودیت په صـــورت کـــې دې مرســـته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:** ځوک کولی شي چې د ٧ دانو لوبیا څخـــه د (ن) توری جوړ کړي. ځوک کولی شی چـــې د ٢، ٣ او ۴ عددونو له منځه د ٢= ٥–٩ ځواب پیدا کړي.

**مهـــــارت:** زده‌کـــــوونکي د ؟ = ٨–٨،؟ = ٨+١ ، ؟= ٠–٩ او ؟=۴+٥ پوښتنې حل کړای شي.

**ذهنیت:** د جمعې او تفریق د عملیو په پوهیدلو سره او د لوبیا او نورو دانو څخه د تورو او رقمونو پـــه جوړولـــو سره زده کوونکي د ریاضی سره مینـــه پیـــدا کـــوي او خوښي ځرګندوي.




**ارزښت:** زده‌کوونکي د مشق او تمرین د سوالونو په حل کولو سره، دې ته تیاریږی چې خپل مشکل حل کړي.

**٥–کورنۍ دنده:**

١–لاندې سوالونه حل کړئ.

٦<br>
–٢<br>
٦ ٥ ٤

٧<br>
–٣<br>
٦ ٥ ٤

٢– خپل نومونه د لوبیا، نخودو او ممیزو څخـــه جـــوړ کړئ.

**د لوست عنوان: د جمعې او تفريق تر منځ رابطه**

**(۴۹– ۵۰) مخونه، نولسم لوست**

**وخت: درې ساعتونه ( ۴۵ دقيقه )**

**هدف:** زده‌کوونکي دې وکړای شي چې د جمعــې او تفريق تر منځ د اړيکو ښځـــه پـــه ګتــې اخيســـتنې د تصويرونو په واسطه د جمعې او تفريق عمليه اجرا کړي.

**اصطلاح ګانې:** جمع، تفريق، رابطه.

**د لوست مرستندويه توکي:** قلم، کتاب، کانې د لوبيـــا دانې، لرګوتي (چوبکها) زده کوونکي او نور.

**فعاليتونه:**

۱– زده‌کوونکي دې په دريو يا څلورو ګروپونو بانـــدې وويشي. د هر ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ له خوا وکتل شي.

لومړی ګروپ: څوک کولی شي چې د لوبيـــا د دانـــو څخه د (د) توری جوړ کړي؟ له څو دانو څخه.

دويم ګروپ: څوک کولی شي چې د لوبيا د دانو څخه د (ک) توری جوړ کړي؟ له څو دانو څخه؟

دريم ګروپ: څوک کولی شي چې د کانو څخه د(ت) توری جوړ کړي، له څو دانو څخه.

بيادې دغــه لانـــدې ســـوالونه: ?=۵–۸، ?=۳–۷، ?=۲+۷، ?=۱+۸، ?=۲+۶ جلا جلا په زده کوونکو باندې پر تخته کار وکړي او د زده کوونکو د اشـــتباه

ګانو او تېروتنو په هکله دې هغوی ته لارښوونه وشي.

۲–ښوونکی دې پنځه زده کوونکي د ټولګي پـــه يـــوه کووڼج او ۳ کسه دې په بل کووڼج کې ودروي بيا دې له يو بل زده کوونکي څخه وغواړي چې هغوی ســـره جمع کړي، زده کوونکي دې هغوی سره يو ځای کړي او له بل زده کوونکي څخه دې وپوښتي چې څو شول؟

هغه ځواب ورکوي چې ۸ کسه زده کوونکي شول. بل زده کوونکی ته دې نوبت ورکړي او له هغه څخـــه دې وغواړي چې له دغه ۸ زده کوونکو څخه دې ۵ کســـه بيرته خپل ځای ته ولاړشي چې هلته کښېني. کله چې ۵ زده کوونکي پخپل ځای کښيناستل. له بل زده کوونکي څخه دې وپوښتي چې څو زده کوونکي ولاړ پاتې شول.

هغه ځواب ورکوي ۳ زده کوونکي.

په همدې ترتيب دې ښوونکی ۴ کانې پخپل ميز بانـــدې او پنځه کانې دې د يوه زده کوونکي پر ميـــز بانـــدې کښيږدي او يو بل زده کوونکي ته دې ووايي چې راشي او هغه کانې چې د دوو ميزونو پر سر ايښې دي سره يو ځای کړي.

محمود دې راوغواړي او د هغه په واسطه دې وشمېري. پوښتنه دې ترې وکړي چې څو کانې دي؟ هغه وايي چې ۹ کانې. احمد دې ووايي چې لدې ۹ دانو کانو څخه ۵ دانې کانې يې زما پر ميز باندې کښيږده. احمد ۵ دانې

کانې جلاء کوي او د میز پر سریي ږدي. بیا پوښتنه کوي چې اوس د احمد سره څو دانې کانې پاتي دي؟ زده کوونکی ځواب ورکـــوي ۴ دانې کانې پاتي شویدي. بیا ښوونکی زده کوونکی د کتاب ۴۹ مخ ته متوجه کړي د شکل تصویرونو له مخې د

٥ +٣=٨ ، ٨−٣= ٥ او همدارنګه ٦+٣=٩ ، ٩−٣=٦

مثالونه هغوی ته پر تخته باندې حل کړي. د دریم چوکاټ پوښتنې دې د لومړی ګروپ د څلورم چوکاټ پوښتنې دې د دویم ګروپ او د پنځم چوکاټ سوالونه دې د دریم ګروپ په واسطه حل شي.

**۳−مشق او تمرین:** د کتاب ۵۰ مخ پوښتنې چې مشق او تمرین دي، ګروپونو ته دې په مساوي توګه وویشل شي. د زده کوونکو په واسطه دې کار وشي او ښوونکی دې د کار له جریان څخه مراقبت او څارنه وکړي د ستونزو د موجودیت په صورت کې دې لارښوونه وشي.

**۴−ارزونه:** ښوونکی دې د اطمینان د حاصلولو په خاطر له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي او د ستونزو په صورت کې دې لارښوونې ورته وکړي.

**پوهه:** څوک کولی شي چې ۴ + ۲ = □ ، ٦ - □ = ۴ حل یې کړي.

څوک کړای شي چې ۷ + □ = ۹ ، ۹ − ۷ = □ حل یې کړي.

**مهارت:** زده کوونکی د ?= ۵−۹، ?= ۴+۵، ?= ۵−۸ او ?= ۵+۳ پوښتنې حل کړای شي.

**ذهنیت:** د جمعې او تفریق ترمنځ د رابطې په پوهېدو سره د زده کوونکو ذهن او فکر تغیر او بدلون مـــومي او خوښـــي څرګندوي.

**ارزښت:** زده‌کوونکي له خپلو زده کړو څخه پخپلو ورځنیو چارو کې ګټه اخلي او خپلې ستونزې حل کوي.

**۷−کورنی دنده:** لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

| | |
|---|---|
| ۳<br>+ ۵ | ۵<br>+۳ |
| ۲<br>+ ٦ | ٦<br>+ ۲ |

هدف: دجمعې مشق اوتمرين دجدولونو په واسطه.

| + | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۸ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ |
| | ۷ | ۶ | | | | | |

| + | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۹ | ۸ | ۷ | ۶ | ۵ | ۴ | ۳ | ۲ |
| | ۱ | ۲ | | | | | |

| + | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۵ | ۶ | ۲ | ۱ | ۷ | ۳ | ۴ |
| ۴ | | ۶ | | | ۵ | |
| ۹ | ۹ | | ۷ | ۸ | | ۶ |

| + | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۳ | ۵ | ۲ | ۱ | ۳ | ۴ |
| ۵ | | | ۷ | | ۳ |
| ۸ | ۹ | ۷ | | ۹ | |

۱ + ۱ = ۲
۱ + ۲ = ۳
۱ + ۳ = ۴ ، ۲ + ۲ = ۴
۱ + ۴ = ۵ ، ۲ + ۳ = ۵
۱ + ۵ = ۶ ، ۲ + ۴ = ۶ ، ۳ + ۳ = ۶
۱ + ۶ = ۷ ، ۲ + ۵ = ۷ ، ۳ + ۴ = ۷
۱ + ۷ = ۸ ، ۲ + ۶ = ۸ ، ۳ + ۵ = ۸ ، ۴ + ۴ = ۸
۱ + ۸ = ۹ ، ۲ + ۷ = ۹ ، ۳ + ۶ = ۹ ، ۴ + ۵ = ۹

ښاغلي ښوونکی په مشق او تمرين کې د ورکړل شوي جدولونو تش ځايونه دزده کوونکو په واسطه ډک کړئ.

۵۱

**د لوست عنوان: مشق او تمرين**

**مخ: (۵۱- ۵۲)**

**وخت: درې ساعتونه( ۴۵ دقيقه يې)**

**هدفونه:** زده کوونکی وکړای شي چې پــه مشـــق او تمرين کې تش ځايونــه او جدولونــه ډک کـــړی. د عددونو په پرتله کولو کې، <، > او = علامې پخپلــو مناسبو ځايونو کې استعمال کړی.

**اصطلاح ګانې:** جمع، پرتله کول او د جدول شمېرنه،

**د لوست مرســـتندوی تــوکي:** قلـــم، کتابچـــه، زده کوونکي، د لوبيا دانې، د ونو پاڼې او نور.

**د لوست مرستندويه توکي:** قلم، کتابچه، زده‌کوونکي، د لوبيا دانې، د ونو پاڼې او نور.

**فعاليتونه:**

۱-ښوونکی دې زده‌کوونکي په ۳ ګروپونـــو بانـــدې وويشي. د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. د هر ګروپ تېروتنې دې د تختې پر مخ باندې وليکل شي او بحث دې پرې وشي. بيـــا دې لاندې پوښتنې وپوښتل شي.

درېيم ګروپ د: ?=۳+۶، ?=۶-۹ پوښتنې د لرګوټو او يا د ونو د پاڼو په واسطه حل کړي.

دويم ګروپ دې ?=۲+۶ او ?=۲-۸ پوښتنې په خپله په زړه پورې توکو (موادو) سره حل کړي.

لومړی ګروپ: د ۷= ☐+۵ او ۲=۵- ☐ پوښتنې

هدف: زده کوونکي وکولای شي وشميري اوهم دشيانو شمير يوله بله سره پرتله کړي.

۶ > ۵

<

>

<

<

<

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۵ ۶ | ۷ ۸ | ۹ ۹ | ۷ < ۸ |
| ۸ ۶ | ۴ ۸ | ۴ ۶ | ۷ ۳ |
| ۵ ۸ | ۸ ۸ | ۶ ۷ | ۹ ۸ |

ښاغلي ښوونکی دې زده کوونکي وپوهوي دحل شوي مثال په ډول د (<) نښې دواړه خواوٴ ته مناسب عدد وليکئ او همدارنګه په همدې مخ کې په وروستيو پوښتنو کې دهر دووعددونو ترمنځ د(< ، = او>) مناسبه نښه وليکئ.

۵۲

د لوبيا د دانو په واسطه حل کړي.

په دويم ګروپ کې څوک کولی شي چــې د < او > علامو دواړو خواوته د کم او زيات عددونه وليکي.

په درېيم ګروپ کې څوک کولی شي چې دغه جـــدول بشپړ کړي.

| ۱ | ۲ | | | ۵ | | ۷ | | ۹ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

د لومړي ګروپ څخه: احمد دغه علامـــه (=) د دوو عددونو ترمنځ څه وخت ليکلی شو؟

(د مساوی عددونو ترمنځ)

د دوهم ګروپ نه: محموده، دغه علامه (<) د کومو دوو عددونو په منځ کې ليکئ؟ د (کم او زياتو عددونو ترمنځ).

د درېم ګروپ نه: محموده د ۴+۲ ☐ ۱+۵ تـــرمنځ کومه علامه ليکل کيږي؟ د (مساوی علامه).

په همدې ترتيب دې په نوبت سره د نورو زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي.

۴زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته ودروي يـــوه زده کوونکی ته دې ووايي، څو زده‌کوونکي د هغو ســـره يوځای شي ترڅو ۹ کسه زده کـــوونکی شـــي؟ زده کوونکی په عملي توګه ۵ زده‌کوونکي د هغوی ســـره يوځای کوي او وايي چې ۵ زده کـــوونکي چـــې د ۴ زده‌کوونکو سره يو ځای شي ۹ کســـه زده‌کـــوونکي کيږي.

په همدې ترتیب دې مشق او تمرین ته ادامه ورکړي او زده‌کوونکي دې د کتاب **٥١** مخ ته متوجه کړي. د نمونه یـــې جدول سره دې سم په زده کوونکو باندې په ډلئیزه توګه څو جدولونه کار وشي.

ښوونکی دې لارښوونه او مرسته ورسره وکړي.

| ٧ | ٦ | ٥ | ٤ | ٣ | ٢ | ١ | ٨ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ١ | | | | | ٦ | ٧ | |

**٥–مشق او تمرین:** وروسته دې زده‌کوونکي **٥٢** مخ، ته متوجه کړي. د نمونې مطابق دې زده کوونکي له خپلو شکلونو او تصویرونو څخه استفاده وکړي جدولونه دې د ٧ < ٨ نمونې مطابق چې زده‌کوونکي دې د هرو دواړو عـــددونو تر منځ دې مناسبه علامه د(<، >) ولیکي او ښوونکی دې د دوی د کار څخه څارنه وکړي.

**٦–ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونکی خپل ځان مطمین کړی وي، د زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي او د ستونزو د شته والي په صورت کې دې لارښوونه او مرسته ورسره وکړي.

**پوهه:** څوک کولی شي چې په جدول کې تش ځایونه ډک کړي؟

| ٥ | ٤ | | ٢ | ١ | ٧ |
|---|---|---|---|---|---|
| ٢ | | ٣ | | ٦ | |

څوک کولی شي چې د دې دوو عددونو په منځ کې مناسبه علامه ولیکي؟

٦ ٥ | ٦ ٧ | ٧ ٨

**مهارت:** زده‌کوونکي لاندې پوښتنې حل کړای شي؟

| ٢ | ٧ | ٤ | ٣ | ٦ |
|---|---|---|---|---|
| | | ٤ | | |
| ٨ | ٨ | | ٨ | |

مناسب عددونه د (<، >) علامو دواړو خواوو ته ولیکلی شي.

< | > | < | >

**ذهنیت:** د پوښتنو او تمرینونو په حل کولو سره د زده کوونکو ذهن تغیر او وده کوي. د خپلو کارونو د سرته رسولو نه خوښیږی.

**ارزښت:** زده کوونکي د مسایلو په پوهیدلو او له پوهې څخه پخپلو ورځنیو چارو کې کار اخلي او خپلې ستونزې حـــل کوي.

**٧–کورنی دنده:** د عددونو په منځ کې د (<، > او =) علامې ولیکئ.

٨ ٩ | ٧ ٦

٨ ٨ | ٨ ٥

**د لوست عنوان: تر ۱۰ پورې د عددونو لوستل، ليکل او شمېرل**

**مخ: (۵۳) شلم لوست**

**وخت:** درې (۴۵ دقيقه يې) ساعتونه.

**هدف:** زده کوونکي دې د لسو(۱۰) عـدد ليکـل، لوستل، شمېرل زده کړي.

**د لوست مرستندوی توکي:** د جوارو دانې، کاني، قلم، کتابچه، کتاب، زده کوونکي او نور.

**فعاليتونه:**

۱–ښوونکی دې زده‌کوونکي په ۳ ګروپونو ووېشي. د يوه ګروپ کوربنی دنده دې د بل ګروپ له خوا وکتل شي. تېروتنې دې پخپله د زده کوونکو او يا د ښوونکی له خوا پر تخته وليکل شي. په زړه پورې ځوابونـــه دې پخپله د زده‌کوونکو او يا د ښوونکي له خوا ورته برابر شي. په نوبت سره دې لاندې سوالونه په ډله‌ييزه توګـــه وپوښتل شي. د لومړي ګروپ څخه ځوک کولی شـــي چې د ۹ □ ۷+۱ او ۷ □ ۲+۵ ســوالونو پــه تشـــو ځايونو کې د < او > مناسبې علامې وليکي؟

په دويم ګروپ کې ځوک کولی شي چـــې د < او > علامو دواړو خواووته کم او ډېر عددونه وليکـــي. پـــه دريم ګروپ کې ځوک کولی شي چې دغـــه جـــدول بشپړ کړي.

| ۱ |  | ۳ |  |  | ٦ |  | ۸ |  |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

د لومړي ګروپ څخه: احمده دغه علامه (=) په ۴ □ ۳+۱ پوښتنه کې ليکلی شو؟

هوکي. ځکه چې سره مساوي دي.

د دويم ګروپ څخه: محمود، دغه علامــه > د دوو کمو يا زياتو عددونو په منځ کې ليکلای شو؟

د دريم ګروپ څخه محموده: د ۲+۲ □ ۳+۱ پــه منځ کې کومه علامه ليکل کيږي. د مساوی علامه. په همدې ترتيب سره دې د نورو زده کوونکـــو څخـــه پوښتنې وشي.

۲–ښوونکی دې يوه زده کوونکی ته ووايي چې تـــر ۸ پورې وشمېره او پر تخته يې وليکه بل زده کوونکي ته




دې ووايي چې د ۹ تر عدد پورې وليکه، و دې شمېرې او په ګروپي توګه دې پوښتنې وشي. ځوک کولی شي ووايي چې له ۹ څخه وروسته کوم عدد دی؟

امکان دې ولري چې زده‌کوونکي ځواب ووايي خو که چېرې ويې نه ويلی شي نو ښوونکی دې ووايي چـــې د لسو عدد دی يو بل زده‌کوونکي ته دې ووايـــي چـــې راشه لس لرګوټي وشمېره او د ګڼلو طريقـــه دې زده کوونکو ته وروښيي. احمد ته دې ووايي چې راشي او لس دانې لوبيا وې حساب کړي او زده‌کوونکو ته دې وښيي، محمود ته دې ووايي چې د خپلـــو ټولګيوالـــو څخه د لسو کسو نومونه واخلي او ټولو زده کوونکـــو ته دې ووايي چې په لس کسيزو ګروپونو دې ووېشـــل شي، کله چې ښوونکی مطمئن شول چې زده‌کوونکي د لسو عدد پېژني او شمېرلی يې شي، په تصويرونو کـــې يې ښودلی شي. زده کوونکي دې د ۵۲مخ يـــا شـــلم لوست ته متوجه کړی. او د شکل له مخې دې د هغوی تعداد يا شمېر په تصويرونو کـــې وښـــيي او بيـــا دې ښوونکی هغه پر تخته باندې وليکي او په زده‌کوونکـــو باندې دې ځو ځو ځله د هغوی په کتابچو او يا پر تخته باندې مشق او تمرين کړي.

د دې مخ هر چوکاټ دې د يوه ګروپ پــــه واســـطه وليکي او ودې شمېري.

**۳–مشق او تمرین:** زده‌کوونکي دې د درسي کتاب ۵۳مخ وګوري او ځیر دې شي لومړی ګروپ دې ووایي چې پــه دوو لومړیو چوکاټونو کې څه شی رسم شویدی. نومونه دې واخلي او ودې وایي چې څو دی؟ په کتابچو او یا پر تختــه باندی دې یې ولیکي.

دویم ګروپ تاسې دوه پنځمې چوکاټونه وګوری. نوم یې واخلی او ویې لیکی چې څو دي؟

**۴–ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونکی خپل اطمینان حاصل کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړي دی او که نــه؟ لاندې پوښتنې دې مطرح کړي.

**پوهه:** څوک لس لرګوټي پورته کوي؟

څوک د خپلو لسو کسو ټولګیوالو نومونه اخلي؟

څوک په خپلو لاسونو کې لس ګوتي ښودلی شي.

**مهارتونه:** زده‌کوونکی لاندې تش ځانونه په مناسب عددونو سره ډک کړای شي.

| ۱ | | | ۴ | | ٦ | | ۸ | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

۲–عددونه دې په ترتیب سره د کم څخه د زیاتو خواته ولیکلی شي.

**ذهنیت:** د (۱۰) د عدد په پېژندلو سره د زده کوونکو په ذهن کې تغییر راځي. له نورو لوستل شوو عددونو څخه یــې بېلولئ شي او توپیر یې کولی شي.

**ارزښت:** د لسو د عدد په پېژندلو او د نورو سره په توپیر کولو سره کړای شي چې په لسو افغانیو له دوکان څخه کــوم شی واخلي او په خپل ورځني ژوندانه کې له هغو څخه ګټه پورته کړي.

**۵–کورنۍ دنده:** ټولو زده کوونکو ته دې دنده ورکړل شي چې د کتاب ۵۳ مخ د پای جدول په خپلو کتــابچو کــې بشپړ او ولیکي. او هم د دیني علومو، پښتو او دري لس حرفه چې تر اوسه پورې یې لوستلي دي، پخپلو کتــابچو کــې ولیکي.



**د لوست عنوان: له(۱۰–۲۰) د عددونو پیژندنه (۵۴– ۵۵) مخونه، یوویشتم لوست**

**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده‌کوونکي وکړای شي له(۱۰–۲۰) پورې عددونه وپیژني د یویزو او لسیزو په مفهوم باندې پوه شي.

**اصطلاح ګانې:** لسیز، یویز او بنډل یا بنډلونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، پنسلونه، د لوبیا داني، د جوارو داني، زده کوونکي او نور.

**فعالیتونه:** ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو وویشي د هر یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي به اشتباګانو باندې دې زده کوونکي آزاد بحث او خبرې وکړي.

د صحیح ځوابونو پیداکولو په صورت کې د زده کوونکو د کار مراقبت دې وکړي او لاندې پوښتنې دې وکړي.

لومړی ګروپ: لس تنه دې په خپل ځای ودریږي او بیا دې دوه تنه خپل ښي لاسونه یو بل ته ورکړي او یو بل زده کوونکي ته دې ووایي خپل د ښي لاس ګوتي وشمیره.

له دویم ګروپ: لس تنه دې خپل ښي لاسونه پورته کړي، له دریم ګروپ څخه دې لس تنه خپل کین لاسونه پورته کړي، وروسته دې په جلاء، جلاء توګه له زده کونکو څخه پوښتنې وکړي.

احمد دې په ټولګي کې لس قدمه په مخ ولاړ شي، محمود دې له لرګوټو څخه لس لرګوټي جلاء کړي نذیر دې له خپل ټولګیوالو څخه لس تنه بیز یو ګروپ



جوړ کړي، په همدې ډول دې نورې پوښتنې له زده کوونکو څخه وشي.

۲–ښوونکی دې لس داني لرګوټي په میز باندې کښیږدی یو زده کوونکی دې راوغواړي ترڅو لرګوټي وشمیرئ. وروسته بل زده کوونکي ته دې وویل شي. چې لرګوټي دې د تار په واسطه د یوه بنډل په ډول وتړي، له دریم زده کوونکی څخه دې پوښتنه وکړي لرګوټي په کوم حالت کې زیات دي؟

ښایي چې هغه ووایي مساوی دي، په همدې ډول لس داني پنسلونه په میز باندې کښیږدي. یو بل زده کوونکی دې راوغواړي، چې پنسلونه وشمیري، او هم هغه زده کوونکي ته دې ووائي چې هغه د تار په واسطه د یوه بنډل په ډول وتړي، وروسته دې له یوه بل زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي په کوم حالت کې پنسلونه زیات دي، بیا هم ښایي چې زده کوونکی ووایي، چې مساوي دي.

نو ښوونکی دې ورته ووائي رښتیا هم لس یویز (یو دانه یې) او یو لسی یو له بله سره مساوي دي.

|||||||||| ——→ ||||||||||

وروسته یوولس لرګوټي دې په میز باندې کښیږدي یو زده کوونکی دې راوغواړي او ورته ودې وایي لس داني د هغو وشمیره او یو بنډل دې جوړ کړي، کوم وخت چې زده کوونکی د هغه له لسو دانو څخه بنډل جوړ کړ بیا دې وپوښتي، له بنډله پرته څو لرګوټي نور شته دې هغه ورته وایي یو بل لرګوټی.

||||||||||| ——→ |||||||||| |

په همدې ډول دوولس پنسلونه دې په مېز باندې کېښېږدي يوه زده کوونکی ته دې ووائي چې د هغه لس دانې دې بنډل کړي، او په خپله زده کوونکی دې ووايي چې د پنسلونو د لسيزو د بنډله پرته څو نور پنسلونه دي. هغـــه وايـــي، دوه پنسله، په همدې ډول نور فعاليتونه دې سرته ورسوي.

ترڅويو بنډل د لسو او لس يو دانه يې ته ورسيږي ورروسته ښاغلی ښوونکی دې ورته ووائي، يوولس يو بنډل د لســـو، او يو يو دانه يې ده، دوولس يو بنډل د لسو او دوه يو دانه يې دي، د لسيزو بنډلونه او د يو يزو دانې تر شلو پورې ور زده کړئ، د لرګوټو او پنسلونو په واسطه يې ور وښيئي. او بيا دې د زده کوونکو پام د کتاب د ۵۴مخ ته راوګرزوئ چې د کتاب د شکلونو او تصويرونو له مخې چې د زده کوونکو چمتو کول د يويزو او لسيزو د مفهومونو لپاره ده، هغوی تـــه دې (۱) يو او (۱) لس کار وشي. او پاتې دې په ګروپي ډول د زده کوونکو په واسطه کار وشي د ستونزو د شتوالي په صورت کې ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳–مشق او تمرين:** د کتاب ۵۵مخ کې چې کېنې خواته يې لرګوټې د يو دانه يې په شکل دي اوښئ خواته يې د لسيزو بنډل او يويز (يو دانه يې) جوړ کړي دي، د زده کوونکو په واسطه دې ولوستل شي او کار دې وشي او د هغـــه اړونـــد عدد دې وليکل شي، او ښوونکی دې د کار مراقبت وکړي، د ستونزو د شتوالی په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۴–ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونکی ځان ډاډه کړي پوښتنې دي وکړي د ستونزو پـــه صـــورت کـــې دې مرســـته او لارښوونې وکړي.

**پوهه:** څوک ويلای شي چې د ۱۴ په عدد کې څولسی او څو يو دانه يې دي؟

څوک ويلای شي چې ۱۶ څو لسيه او څو يو دانه يې لري؟

**مهارت:** زده کوونکی دې وکړای شي د لسيزو بنډلونه او يو دانه يې سره جلا او اړوند عدد يې وليکي.

څو لسيه او څو يو دانه يې ←——— ||||||||||

څو لسيه او څو يو دانه يې ←——— |||||||||||||||||

**ذهنيت:** د دې پوه په اخستلو او تر ۲۰ پورې د دوو رقمي عددونو په پېژندلو سره د زده کوونکو په ذهن او فکر کـــې بدلون راځي او احساس د خوښي کوي.

**ارزښت:** تر ۲۰ پورې د عددونو پوهېدل، زده کوونکی په ورځنۍ ژوند کې په پلورلو او اخستلو کې ورڅخه ګټه اخلي.

**۵–کورنۍ دندې:** د هر شکل اړوند عدد په تشو ځايونو کې وليکئ.

|||||||||| ||| ——→ [ ]

|||||||||| |||||| ——→ [ ]

|||||||||| ||||||||| ——→ [ ]

**د لوست عنوان:** د يوه رقمي عددونو جمع له ۱۰ سره (۵٦– ۵۷– ۵۸ مخونه، دوه ويشتم لوست

**وخت:** درې ساعته د لوست (۴۵ دقيقه يې)

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د ۱۰ عدد، د يوه رقمي عدد سره جمع کړي.

**اصطلاح ګانې:** لس، جمع يو رقمي

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، وړې ډبرې، قلم، کتاب، زده کوونکي او نور.

**فعاليتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو وويشي د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، اشتباه ګانې دې د زده کوونکو په واسطه اصلاح شي. او په ګروپې ډول دې لاندې پوښتنې وشي.

لومړی ګروپ: د ۱۲ عدد د څو لسيزو او څو يويزو څخه جوړ شوی ده؟ يو لسيز او ۲ يويز.

دويم ګروپ: د ۱۵ عدد د څو لسيزو او څو يويزو څخه جوړ شوی ده، يوه لس او ۵ يوه دانه يې څخه.

دريم ګروپ: د وړو ډبرو له منځ څخه داسې ډبرې جلاء کړئ چې يو لسئ او ۳ يو دانه يې وښيئي.

او هم په جلاء، جلاء توګه په وار سره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړی ترڅو ټول زده کوونکي برخه واخلي.

۲–ښاغلی ښوونکی دې لس زده کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي د ټولګي په يوه ګوټ او يو بل زده کوونکی دې د ټولګي په بل ګوټ کې ودروي او وروسته هغوی دې يو له بله سره يو ځای کړي. او يو بل زده کوونکي ته دې ووايي، چې ويې شميري او ودې پوښتي، څو زده کوونکي شول، هغه ځواب ورکوي، ۱۱ زده کوونکي، بيا دې پوښتنه وکړي څه ډول ۱۱ زده کوونکي شول. زده کوونکي ځواب ورکوي، لس زده کوونکي او يو زده کوونکی يو ځای شول چې ۱۱ زده کوونکي شول او همدارنګه يو بل



دوه ويشتم لوست

هدف :زده کوونکي وکولای شي د ۱۰ عدد ديوه رقمي عدد سره جمع کړي

۱ لسی او ۱ يو = ۱۱ = ۱ + ۱۰

۱ لسی او ۲ يو = ۱۲ = ۲ + ۱۰

۱ لسی او ۳ يو = ۱۳ = ۳ + ۱۰

۱ لسی او ۴يو = ۱۴ = ۴ + ۱۰

۱ لسی او ۵ يو = ۱۵ = ۵ + ۱۰

ښاغلی ښوونکی دامشق اوتمرين ديويزو او لسيزو دپيژندلو لپاره ده ترڅو زده کوونکي ښه پوه شي چې مثلاً ۱۲ له يوه لسی او۲ له عدد څخه جوړ ده نو په ۱۲ کې د ۱ عدد يونه ده بلکه يولسئ ده او ۲ له ۲ يوه دانـه يـې څخه عبارت ده چې ۱۲ کيږي . په همدې ډول دنورو عددونو په برخه کې هم څرګنده ونې وکړئ او دلوست په بهير کې زده کوونکو ته دې برخه ورکړل شي دپوښتنې اوځواب په شکل دې کار وشي.

۵۶

زده کوونکي ته دې ووايي لس دانې لرګوټي په خپل لاس کې ونيسه، او بل زده کوونکي ته دې هم ووايي چې ۴ دانې لرګوټي په خپل لاس کې ونيسي وروسته له هغه دې ورته ووايي تاسو دواړه خپل لرګوټي احمد ته ورکړئ، کله چې لرګوټي يې احمد ته ورکړل، احمد ته وواياست په جګ غږ سره يې وشميره، چې تاسره څو دانې لرګوټي دي؟ هغه يې شمېري او وايي ۱۴ لرګوټي، وروسته له محمود څخه دې پوښتنه وکړي، له احمد سره ۱۴ لرګوټي له کوم ځايه شول؟ هغه ځواب ورکوي، ۱۰ لرګوټي له ۴ لرګوټو سره يوځای شول چې ۱۴ لرګوټي شول. بيا دې پوښتنه وکړي په ۱۴ لرګوټو کې څو لسيز او څو يويز دي، هغه ځواب وايي چې يو لسيز او ۴ يويز دي، وروسته دې ښوونکی دا عمليه په تخته باندې وليکي.

۱ لسي او يو يو دانه يې= ۱۱.او ۱۱ زده کوونکي= ۱ زده کوونکی+ ۱۰ زده کوونکي.

۱ لسئ او ۴ يو دانه يې= ۱۴.

او ۱۴ لرګوټي= ۴ لرګوټي+ ۱۰ لرګوټي

دا فعاليت دې د زده‌کوونکو په واسطه ادامه ومومي وروسته له دې د زده‌کوونکو پام د لوست ۵٦مخ ته راوګرزوی د شکل او تصويرونو له مخې دې د جمعي

په عمليو کې لکه د ۱۲=۲+۱۰ مثال کـــار وشـــي.
ښوونکی دې زده کوونکوته ووايي چې ۱۲ له يوه لسيځ او دوو يو دانه يي خخه جوړ شوي چې د ۱۲ په عـــدد کې د (۱) رقم يو لسيځ ده او ۲ له دوو يو دانـــه يـــي خخه عبارت دئ. چې ۱۲ کيږي. په همـــدې ډول د نورو پوښتنو په برخه کې د زده کوونکو په واسطه دې بحث او خبرې وشي.

**۳–مشق او تمرين:** د زده کوونکو پـــام د لوســـت د کتاب ۵۷مخ ته راوګرزوي د لسونو د بنډلونو او يـــو دانه يـــي لـــه مخـــې د ۱۳=۳+۱۰ او ۱۴=۴+۱۰ مثالونه حل کړي. پاتې پوښتنې چې د شکلونو په پـــای کې دي په ګروپي ډول په تشو ځايونه کار وشـــي پـــه داسې حال کې چې دريم چوکاټ د لومړی ګروپ پـــه واسطه، څلورم چوکاټ د دويم ګروپ په واسطه او هم د لوست د کتاب ۵۸مخ چې د شکلونو مخامخ تـــش ځايونه دې لکه حل شوی مثال د دريـــم ګـــروپ پـــه واسطه دې کار وشي، هغه جدول چې په همدې مـــخ کې دئ د تختې پر مخ باندې دې يې رسم کړي په وار سره دې د زده کونکو په واسطه بشـــپړ شـــي ترڅـــو زده کوونکي د دوه رقمي عددونه تر شلو پورې ولولي او وليکلای شي د ستونزو په صورت کې دې ښوونکی د عددونو په ترتيب او ليکلو کې مرسته وکړي.

**۴–ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونکی ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو لوست زده کړئ ده او که نه؟ لاندې پوښتنې دې وکړي د ستونزو د شتوالي په صورت کـــې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:** څوک د ?=۹+۱۰پوښتنه حلوي.

څوک د ?=۹+۱۰ پوښتنه حلوي.

**مهارت:** زده‌کوونکی وکړای شي لاندې پوښتنې حـــل کړي.

۱۵=□+ ۱۰، ۱۶= ٦ + □، ۱۷= □+۱۰

**ذهنيت:** د دې زياتو عددونو او ارقامو پـــه زده کولـــو سره د زده کوونکو ذهن او فکر کې بدلون راځـــي او خوښي کوي.

**ارزښت:** د لسو خخه د زيات عدد په پوهېدو سره پـــه ورځنۍ ژوند کې ګټه اخلي.

**۵–کورنۍ دنده:** زده‌کوونکي دې لاندې جدول بشپړ کړي.

| ۱ | ۲ | | ۴ | | ٦ | | | | ۱۰ | | | | ۱۴ | | | | ۱۸ | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|


پنځم فصل

دهندسی شکلونو، کوچنی، لوي، سپک، درونداورد او لنډ پيژندنه

درويشتم لوست

هدف : زده کوونکي وکولای شي چې مستقيمه لاره وپيژني.

پورتنی شکل ته وګورئ او و واياست چې زده کوونکي له کومي لاري يا طريقي په واسطه ژر ښوونځی ته رسيږی.

په پورتنی شکل کې هغه لاره وښياست چې سوګی ژر ترژره ګازروته رسيږي.

ښاغلي ښوونکی وروسته له پوښتنو، اوپوښتنو کولو څخه زده کوونکو ته وواياست که چيري په سمه او مستقيمه لاره ولاړ شي نو ژر خپل هدف او ځای ته رسيږي.

۵۹


څلور ويښتم لوست

هدف: زده کوونکي وکولای شي مستقيم خطونه وپيژني اوله نورخطونوڅخه يې توپير وکړئ.

ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې په هرچوکاټ کې څو مستقيم خطونه دي.
په دې مخ کې ټوله څو سم يا مستقيم خطونه دي.
ښاغلي ښوونکی دخط کش څخه په کار اخستني سره مستقيم خط دزده کوونکو په واسطه رسم کړئ.

۶۰

**د لوست عنوان:** ځني هندسي شکلونه

**(۵۹– ۶۰) مخونه، درويشتم لوست**

**وخت:** درې ساعته د لوست **(۴۵ دقيقه يي)**

**هدفونه:** زده کوونکي دې مستقيمه لاره وپيژني، زده کوونکي دې مستقيم خطونه وپيژني او له نورو خطونو سره يې توپير وکړای شي.

**اصطلاح ګاني:** مستقيم خط

**د لوست مرستندوی مواد:** تارونه په مختلفو اوږدوالي سره، لرګوټي، زده کوونکي، خط کش او نور.

**فعاليتونه:**

۱–زده کوونکي دې په دريو ګروپونو وويشل شي د هر ګروپ کورنی دنده دې د بل ګروپ يا ښوونکي په واسطه وليدل شي، په اشتباه ګانو باندې دې بحث او خبرې وشي وروسته دې لاندې پوښتنې وشي.

لومړی ګروپ: په ۱۸ کې څو لسيز او څو يويز دي. د موادو په واسطه يې وښياست.

دويم ګروپ: (۱) يولسيز او ٦ يويز څو لوستل کيږی د موادو په واسطه يې وښياست.

دريم ګروپ: لس يو داني زيات دي او که يو لسيز د موادو په واسطه يې وښياست. په همدې ډول له زده کوونکو څخه دې نوري پوښتنې وشي.

د لومړی ګروپ: احمد دې ووائي چې له (۱۱) وروسته کوم عدد دئ؟

له دويم ګروپ: محمود دې ووائي چې له ۱۷ څخه مخکې کوم عدد دئ؟

له دريم ګروپ: نذير دې ووائي چې د ۱۹ او ۱۷ په منځ کې کوم عدد دئ؟

۲–ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي د ښوونځی غولي ته وباسي او هر ګروپ ته دې ووايي چې هر ګروپ دې جلاء، جلاء په يوه کتار کې ودريږي. ښاغلی ښوونکی دې کتارونه په غور سره وګوري او پوښتنه دې وکړي چې کوم کتارونه مستقيم ولاړ دي. او همدارنګه زده کوونکي دې د ښوونځی د واليبال د واټ ته بوزي او څلور تنه دې د واليبال د واټ په څلورو ګوټو کې داسې ودروي.




زلمی ته دې ووايي چې په سمه (مستقيمه) توګه محمود ته ورشه. او بيا دې زلمی ته ووايي لومړی احمد ته، بيا وروسته محمود ته ورشه. وېلاي شئ، په هغو دوو طريقو چې تاسو په لاره ولاړ ياست، کوم واټن زيات او کوم واټن يې لږ دی.

۳–ښاغلی ښوونکی دې د آواري ځمکې په مخ درئ

لاري داسې رسم کړي.



وروسته یوه زده کوونکې مثلاً زلمی ته دې ووایي چې دا لاري یا خطونه د خپلو قدمونو په واسطه وشمیری. چې هـره یوه یې څو قدمه کیږي. له قدم کولو وروسته زده کوونکو ته دې ووایي، د هري لاري د قدمونو شمیر په تخته بانـدې ولیکی، بیا دې پوښتنه وکړي کومه یوه د هغو زیات او کومه یوه یې لږ ده. سبا ته دې زده کوونکي ځواب ووایي، لـه هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې په خپله د قدمونو په واسطه وشمیری، او نتیجه دې زده کوونکو ته ووایي، لـږ او زیـات دې هغوی ته څرګند کړي. د لوست د ښه تینګښت لپاره دې ښاغلی ښوونکی مساوي یعنی برابر لرګـوټي پـه سـم (مستقیمه) توګه، او په کاږه توګه د زده کوونکو په واسطه داسې کښېږدې ترڅو د هغو سرونه یو له بله سره یوځـای یعنی ونښلول شي او په خپله دې ووینی چې په مستقیم ډول څو لرګوټو ته اړتیا ده، او هم په کاږه توګه څو لرګوټو تـه اړتیا پیدا کیږي. او یا دې تارونه په مستقیم او کاږه ډول داسې کیږدي چې د تارونو سرونه یو له بله سره په یوه نقطـه کې یو ځای شي. او له هغه وروسته دې تارونه په عملی توګه یو له بله سره پرتله کړي.
زده کوونکی دې په خپله ووینی هغه تارونه چې په کاږه ډول ایښودل شوی دي، زیات یا اوږ ده او هغه تارونه چې پـه مستقیم ډول ایښودل شوي دي، لږ یا لنډ دي. ښوونکی دې له دې پوښتنو کولو وروسته زده کوونکو ته ووایـې کـه چېری په خپله لاره باندې مستقیم ولاړ شئ. نو خپل ځای ته ژر رسیږئ. او د زده کوونکو پام دې د لوست د کتـاب ۵۹مخ ته راوګرزوي.
شکلونه او تصویرونه دې هغوی ته ور وښيي، بیا دې پوښتنې وکړي، چې زده کوونکی له کومې لاري یا طریقی څخـه ژر ښوونځي ته رسیږی. ښائي چې زده کوونکي ځواب ووایي چې د مستقیمي لاري یا په اصطلاح د سـمي لاري پـه واسطه، او همدارنګه د دویم تصویر په برخه کې دې هم له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي ترڅو هغـوی پـه خپلـه مستقیم یا سمه لاره پیدا کړي او هغې لارې ته چې سوی ګی ژر کازروته ځان رسوي مستقیمه لاره ووائي.
او ښاغلی ښوونکی دې د خط کش څخه په کار اخستنې سره یوازې مستقیم خط په دړه باندې رسم کړي او د رسـم کولو طریقه دې هغوی ته ور زده کړي.
**۴–مشق او تمرین:** لومړی ګروپ دې د کتاب په ۶۰ مخ کې په دوو لومړنیو چوکاټونو کې مستقیم خطونه پیدا کړي او د هغو شمیر دې ووایي.
**دویم ګروپ:** په دویم چوکاټ کې دې مستقیم خطونه پیدا کړي او د هغو شمیر دې ووایي.
**دریم ګروپ:** د پای یا په وروستي چوکاټ کې دې مستقیم خطونه پیدا کړي او د مستقیمو خطونو شمیر دې معلـوم کړي.
**۵–ارزونه:** د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډه شي له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي، د ستونزو په صـورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.
**پوهه:** څوک په دې خطونو کې مستقیم خط ښيي؟



څوک په لاندې خطونو کې مستقیم خط ښيي.



**مهارت:** زده کوونکي وکړائ شي د خط کش څخه په کار اخستنې سره مستقیم خطونه رسم کړي.
**ذهنیت:** زده کوونکي د مستقیم او لنډې لاري په پېژندلو او پوهیدو سره د نوي ذهن او فکر خاوند کیږي او لـه هغـه څخه په کار اخستنی سره خوبنی ښکاره کوي.
**ارزښت:** زده کوونکي د دې په پوهیدو سره چې د مستقیمی لاري په واسطه، کور، ښوونځي او جومات ته ژر رسیږو، د تل دپاره د مستقیم لاري څخه کار اخلي.
**۶–کورنۍ دنده:** هر یو د زده کوونکو څخه دې دوه مستقیم خطونه، او دوه خطونه چې مستقیم نه وي د کتـاب ۶۰ مخ څخه سبا ته دې په خپلو کتابچو کې رسم او له ځانو سره دې راوړي.

**د لوست عنوان: هندسي شکلونه**

**(۱٦۱) مخ، پنځه ویشتم لوست**

**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقیقه يې)**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي ځنې هندسي شکلونه وپيژني او يو له بله يې توپير وکړي.

**اصطلاح ګانې:** مثلث، دايره، مربع او مستطيل.

**د لوست مرستندوی مواد:** مثلثونه، دايرې، مربع ګانې، چې دا ټول له کاغذ څخه جوړ شوي وي، تار، سيم او لرګوټي چې د هغو په واسطه هندسي شکلونه جوړ شي.

**فعاليتونه:**

۱–زده کوونکي دې په ۳ ګروپونو وويشل شي د هـــر ګروپ کورنى . دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي اشتباه ګانې د يې د زده کوونکو په واسطه اصلاح شي د اړتيا په صورت کې دې مرســـته او لارښـــوونه وشي. لومړى ګروپ دې ووايي چې د دې خطونو پـــه منځ کې کوم يو يې مستقيم خط دئ؟



او هم په خپل ځان کې کوم مشتقيم خط ښودلاى شي.

دويم ګروپ: په خپل ټولګي کې مستقيم خط وښـــيي.

دريم ګرو: ستاسو د ښوونځى دالان سم يعنى مســـتقيم دى او که نه؟

له دريم ګروپ څخه دې يو تن راشي پر تختـــه دې د خط کش په واسطه دوه مستقيم خطونه رسم کړي. له دويم ګروپ څخه دې احمد دوه خطونه چې مستقيم نه وي پر تخته باندې رسم کړي. له لومړى ګروپ څخه دې نذير يو مستقيم خط او يو خط چې مستقيم نه وي پر تخته باندې رسم کړي.

۲–له لومړي ګروپ څخه دې بريـــالى راشـــي د دې کاغذي شکلونو له منځه دې يو شکل چې درې ګوټـــه ولري جلاء کړي. که چيرې بريالى نه شـــو. ښـــاغلى ښوونکى دې يو بل زده کوونکئ راوغواړي. او يا دې په خپله مرسته وکړي. له دويم ګروپ څخه دې يو زده کوونکي راشي د دې کاغذي شکلونو له منځه دې يـــو شکل چې څلور ګوټونه لري جلاء کړي. ښايي چې زده



پنځه ویشتم لوست

هدف :زده کوونکي وکولای شي ځني هندسي شکلونه وپيژني او يوله بله سره توپير کړئ.

مستطيل

مثلث

دايره

مربع

دمثلث ګردچاپير خط وکاږي

ددائيري ګردچاپيره خط وکاږى

دمربع ګرد چاپيره خط وکاږى

ښاغلي ښوونکى: پورتنى هندسي شکلونه چې زده کوونکو ته وريپژنى کولاي شئ ددې شکلونو پـــه ډول پـــه ټولګى، ښوونځى اودښوونځى ګردچاپيره زده کوونکو ته وښياست اوهم له زده کوونکو څخه پوښتنه وکـــړئ چې دهمدي شکلونو په ډول نور شکلونه دې هغوي په خپله تشخيص او وښيئ

٦۱

کوونکى د مربع شکل او مستطيل شکل دواړه جـــلاء کړي. فرق نه کوي.

له دريم ګروپ څخه دې يو زده کوونکئ راشي د دې کاغذي شکلونو له منځه دې يو شکل جلا کړي چـــې هيڅ ګوټ و نه لري، يعنى ګرد وي، که چيـــرى زده کوونکو وکولاي شول ښه، له هغه پرته دې ښـــوونکى دايره هغوی ته جلاء کړي. او ورته ودې وايي چې پـــه دې شکل کې ګوټ نه ليدل کيږي، ګرد ده، په همدې ډول ښوونکى دې د درې ګوټو، څلـــور ګوټـــو، درې ګوټو او ګرد شکلونو په برخه کې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي.

او ښوونکى دې په عملي توګه له دريو لر ګوټو څخه يو مثلث، له څلور لرګوټو څخه يو څلور ګوټي يعنى مربع او مستطيل، او له تار يا ســـيم څخـــه دې دايـــره زده کوونکو ته جوړه کړي. او نومونه دې هغوی ته ور زده کړي، بيا دې د زده کوونکو پام د کتاب ٦۱ مخ ته را وګــــرزوي او شـــــکلونه دې پـــــر تختـــــه رسم کړي او ورته ودې وايي دا شـــکل تاســـو وينئ، مثلث نوميږي، او دا شکل چې له څلورو خطونو يا څلورو کونجو څخه جوړ شـــوى دئ مربـــع نوميږي او دا شکل چې څلور ګوټونـــه لري او له مربع څخه لوى يا اوږد دئ مســـتطيل بلـــل کيږي او دا شکل دايره نوميږى ښـــاغلى

ښوونکی دې د هندسي شکلونو نومونه د زده کوونکو په واسطه ولولي او د هغو په واسطه دې رسم کړي. او په عملـــي توګه دې د لرګوټو په واسطه په زده کوونکو باندې کار وشي ترڅو د هغو په ذهن کې ځای ونیسي.

**۳–مشق او تمرین:** د کتاب په ٦١مخ کې دې لومړی ګروپ د لومړي چوکاټ شکلونو په منځ کې مثلـــث تشـــخیص کړي او د هغو شمیر دې ولیکي.

دویم ګروپ: د دویم چوکاټ د شکلونو په منځ کې دې دایره تشخیص کړي او د هغو شمیر دې ووایي؟

دریم ګروپ: د دریم چوکاټ د شکلونو په منځ کې دې مربع وښيئي. او وشمیري چې څو مربع ګاني دي؟

**۴–ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونکی ځان ډاډه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی ده او کـــه نـــه؟ لـــه زده کوونکو څخه دې پوښتني وکړي او د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:** څوک په لاندې شکلونو کې مربع ښيي.



څوک په لاندې شکلونو کې دایره ښيي.



**مهارت:** زده کوونکي مربع، مثلث، مستطیل او دایره رسم کړای شي.

**ذهنیت:** د دې هندسی شکلونو په پیژندلو سره د زده کوونکو په ذهن او فکر کې بدلون راځی او د هغـــو هـــم ډولـــه شکلونه له نورو شکلونو څخه جلا کوي. او له دې منظمو شکلونو سره مینه پیدا کوي.

**ارزښت:** د دې شکلونو پیژندګلوي دا ګټه لري چې هغوی په ورځنی ژوند کې، د ګلانو په پټیو د کور په غولي او نورو کې کار ورڅخه اخلي.

**۵–کورنی دنده:** هر یو زده کوونکی دې یوه مربع، یوه دایره، یو مستطیل او یو مثلث د کاغذ له ټوټې څخه جوړ کړي او له ځان سره دې راوړي.

**د لوست عنوان: کوچنی او لوی شیان**
**شپږ ویشتم لوست (٦٢) مخ،**
**وخت: د لوست درې ساعته (۴۵ دقیقی)**
**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي کوچنی او لوي شـــیان وپیژني، او په عینی توګه یې یو له بله سره پرتله کـــړای شي.
**اصطلاح ګانې:** کوچنی، لوی، پرتله.
**دلوست مرستندوی مواد:** وړی ډیری، پنسلونه، کوچنی او لوي قلمونه، زده کوونکي، میز، چوکی او نور.
**فعالیتونه:**
۱–ښاغلی ښوونکې دې زده کوونکي په ۳ ګروپونـــو وویشي. د یوه ګروپ کورنی دنده دې د بل ګروپ له خوا وکتلي شي، پوښتنې او اشتباه ګانې دې لـــومړی د زده کوونکو له خوا اصلاح شـــي او لـــه هغـــه پرتـــه ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکـــړي او لانـــدې پوښتنې دې په ټولګي کې وشي.
لومړی ګروپ: یو مثلث پر تخته باندې رسم کـــړئ او وواياست چې مثلث څو ګوټونه لري؟
دويم ګروپ: یوه مربع او یو مستطیل پر تخته بانـــدې رسم کړئ او وښیاست چې مربع او مستطیل هر یو یې څو ګوټونه لري؟
دریم ګروپ: یوه دایره پر تخته باندې رسم کـــړی او وښیاست چې په دایره کې کوم ګوټ لیدل کیـــږي او که نه؟ او بیا دې په جلاء، جلاء توګه له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي. که چیري زده کوونکو ځـــواب ونشو ویلای ښوونکی دې مرسته ورسره وکړي.
له لومړی ګروپ څخه اسد: په ټولګي کې د مربع او یا مستطیل په ډول کوم یو شکل ويني؟ وښیاست.
له دویم ګروپ څخه محمود: په ټولګي یا ښوونځي کې د دایری په ډول کوم شکل شته، وښیاست.
له دریم ګروپ څخه احمد: په ټولګي یا ښوونځي کـــې د مثلث په ډول کوم شکل شته دي؟ وښیاســـت. پـــه همدې ډول د هندسې شکلونو په برخه کې دې نـــورې پوښتنې وشي.
۲–ښاغلی ښوونکی دې له یوه زده کـــوونکي څخـــه پوښتنه وکړي: ستاسو په ټولګي، کې کوم یو ټولګیوال تر تاسو ټولو لوی دې؟ ښایي چې زده کوونکي ځـــواب ووائي او ویې ښودلای شي په همدې ډول ښوونکی دې د یوه زده کوونکي په یوه لاس کې قلم او په بـــل لاس کې تباشیر ورکړي. او پوښتنه دې وکړي: کوم یو یـــې لوی دی؟ د ځواب ترلاسه کولو وروسته دې بیا پوښتنه وکړي. میز لوی دی او که څوکی؟ او همدارنګه لـــه زده کوونکو څخه دې په جلاء، جلاء توګه پوښـــتنې وکړي. احمد لوی دئ او که زلمی؟ چاینکه لویه ده او که پیاله؟کاسه لویه ده او که کاچوغه؟ آس لوی دې او که میږه؟ دیګ لوی دې او که د ډوډې خوړلو کاسه؟ ختکی لوی دی او که منه؟کتاب لوی دی او که قلـــم؟ زده کوونکي دې پوښتنې او ځوابونه د مسابقې د لوبې په ډول کار وکړي او د کارکولو د جریان څارنـــه دې وشي.




بیا دې ښوونکي هغه مرستندویه مواد چې له ځان ســـره یې راوړي دي زده کوونکو ته وروښـــئي. ترڅـــو زده کوونکي د موادو په لیدو سره د کوچني او لـــوی پـــه مفهوم باندې په ښه توګه پوه شي.
او شیان د جسامت له نظره پرتله کړای شي.
**۳–مشق او تمرین:** د زده کوونکو پام دې د کتـــاب ٦۲مخ ته راواړوي.د لومړي ګروپ زده کوونکی دې په دوو لومړي چوکاټونو کې لوی او کوچنی تصویرونه وښیئي؟ ددویم ګروپ زده کوونکی دې په دوو، دویم چوکاټ کې د کوچنی او لوي تصـــویرونه وښـــیئي؟ د دریم ګروپ زده کوونکی دې په دوو دریم چوکـــاټ کې د کوچنی او لوي، تصویرونه وښیئي؟ او همدارنګه د دریم ګروپ زده کوونکي دې د څلـــورم چوکـــات کوچنی او لوی تصویرونه وښیئي؟
**۴–ارزونه:** د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډه کړي چې زده کوونکو نوي لوست زده کـــړئ او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکـــړي او د ستونزو په صورت کې دې ورسره مرسته او لارښوونه وکړي.
**پوهه:** څوک په ټولګي کې لوی او کوچني شیان ښیي؟ څوک په ښوونځي کې لوي او کوچنی شیان وښیئي؟
**مهارت:** زده کوونکي کوچنی او لوي شیان یو له بلـــه سره جلاء کړای شي، او هم زده کوونکی کـــوچنی او لوې شیان رسم کړای شي.
**ذهنیت:**دکوچني او لوی شیانو په پیژندلو اویو له بلـــه پرتله کولو سره دزده کوونکو ذهن او فکر بدلون مومي په پیژندلو او جلاء کولو سره خوښي ښکاره کوی.
**ارزښت:** د کوچنیو او لویو جسمونو په پوهیدو ســـره هغوی په ورځنی ژوند کې کار ورڅخه اخلي او په ډیر و ځایونو کې سم قضاوت کولای شي.
**۵–کورنی دنده:** هر یو زده کوونکی دې په کتاب کې د کورنی دندې لپاره په ښه شوي شکلونه پـــه خپلـــو کتابچو کې رسم کړي.




**د لوست عنوان: سپک او درانه جسمونه**
**(۶۳– ۶۴) مخونه، اووه ویشتم لوست**
**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه:** زده کوونکي سپک او درانه شیان په عینې توګــه ووینې، سپک او درانه شیان په عینې توګه تشخیص کــړای شي.

**اصطلاح ګانې:** سپک، درانه

**د لوست مرستندویه مواد:** وړې ډبرې په بیلابیلو وزنو نو سره، تله، میز، څوکۍ او نور شیان چې په ټولګې کې او یــا له ټولګې څخه بهر شته والي ولري.

**فعالیتونه:**

۱–ښاغلی ښوونکي دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو وویشي د هر یوه ګروپ کورنی دنده دې د بل ګروپ په واســطه وکتل شي، اشتباه ګاني دې د زده کوونکو یا ښوونکي پــه واسطه اصلاح شي بیا دې لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ دې ووایې چې موټر لوی دی او کــه مــوټر سایکل؟، احمد لوی دی او که محمود.

دویم ګروپ: وواياست هندوانه لویه ده او که ناک؟، ستنه لویه ده او که قیچي؟

دریم ګروپ دې ووایې: ختکې لوی دی او کــه شــفتالو؟ کتاب لوی دی او که تباشیر؟

له لومړی ګروپ څخه: احمد دې یو کوچنی مثلث او یــو لوی مثلث پر تخته باندې رسم کړي.

له دویم ګروپ څخه: محمود دې یو کوچنی مستطیل او یو لوی مستطیل پر تخته باندې رسم کړي.

له دریم ګروپ څخه اسد دې یوه کوچنی مربع او یوه لویه مربع پر تخته باندې رسم کړي.

۲–ښاغلی ښوونکی دې دوه ډبرې چې یوه یې ډیره لویه او بله یې کوچنی وي. په ټولګي کې په خپــل میــز بانــدې کښیږدي، او یوه زده کوونکي ته دې ووایي، راشه دا ډبرې په وار سره پورته کړه ښائي چې زده کوونکي لویــه ډبــره پورته نکړای شي، او کوچنی ډبره پورته کړاي شي په همدې ډول یو بل زده کوونکي ته دې ووایي، چې میز دې پورتــه کړي، هغه هم میز پورته کولاي نشي، بیا دې هم هغــه زده کوونکی ته ووایي چې څوکۍ پورته کړه ښائي چې څــوکۍ پورته کړای شي. او همدارنګه د زده کــوونکي پــه دوو




لاسونو کې دې دوه ډبرې چې مختلف دروند والــي لــري ورکړي او له هغه څخه دې پوښتنه وکړي. کومه یــوه یــې سپکه ده او کومه یوه یې درنه ده؟ بیا دې زده کــوونکي د ښوونځي غولي ته وباسي په خپله د هغوی پــه واســطه دې سپک او درانه مواد تشخیص کړي. له هغــه وروســته دې ښوونکی تله په خپل لاس کې ونیسي او یــا دې یــوه زده کوونکي ته ورکړي هغه دې د تلې په پلو کې په وار ســره مختلف شیان کښیږدي ترڅو زده‌کوونکی په عینــي توګــه سپک او درانه وزنونه ووینې د تلې په واسطه د وزنونو تلل دې د زده کوونکو په واسطه سرته ورسول شي ترڅو ټــول زده کوونکي برخه په کې واخلي په پای کې د زده کوونکو پام دې د لوست د کتاب د ۶۳مــخ تــه راوګــرزوي او زده‌کوونکي دې د هر څوکاټ په برخه کې په ګروپې ډول بحث او خبرې وکړي.

**۳–مشق او تمرین:** د کتاب ۶۴مخ څرنګه چې په هغه کې تلي لیدل کیږی. ښوونکي دې هغه مواد چې په ښوونځي کې پیدا کیږي د هر ګروپ په واسطه جلاء، جلاء په تله کې په عملي شکل کار وکړي. د هر ګــروپ زده کــوونکي دې سپک او دراندە شیان جلاء، جلاء فهرست کړي، بیا دې په شفاهي ډول له ګروپونو څخه د شکلونو او تصویرونو پــه برخه کې پوښتنې وشي او د منلو وړ ځوابونه دې ترلاســه شي. زده کوونکو ته دې د سپک او درانه مفهوم ووایې.

**۴–ارزونه:** ښاغلی شوونکی دې دخپل ځواږ لپــاره لــه زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي. د ستونزو د شته والي په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:** څوک به ووایي چې هندوانه درنه ده او که منه؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي چې د تلې څخه په کــار اخیستلو سره سپک او درانه شیان معلوم کړي.

**ذهنیت:** د سپکو او درنو شیانو په پیژندلو او پوهیدلو سره د زده کوونکو ذهن او فکر بدلون مومي او خوښــي ښــکاره کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي د شیانو د اخستلو او پلورلو په وخت کې پاملرنه کوي او کار ورڅخه اخلي.

**۵–کورنی دنده:** هریو زده کوونکي دې د خپلې خوښې یو سپک شي او یو دروند شي سبا ته له څانه سره راوړي.



نه ویشتم لوست

هدف:زده کوونکي اوږده اولنډ شیان وپیژني او هم یوله بله سره یې توپیر وکړاي شي.

ښاغلی ښوونکی: داوږده او لنډ مفهوم دپورتنی مثالونو په توګه زده کوونکوته ور زده کړئ. اوپه څنګ کې یې نـور مثالونه دمحیط او ګرد چاپیریال څخه په زده کوونکو باندې تکرار کړئ او په عملي توګه دمحیطي موادوڅخه په کـار اخستلو سره په زده کوونکو کار وکړئ.

۶۵



دیرشم لوست

هدف: داونی دورځو پیژندنه او داونی دورځو پرله پسي توب.

ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ.
تاسو دتل لپاره داونی په کومه ورځ ښوونځی ته نه ځی او تاسو په کومه ورځ رخصت یاست؟ زده کوونکي به ځواب ووائې چې دجومی په ورځ اوکه چیری زده کـوونکي ځواب ونشي ویلای،ښاغلی ښوونکی دې ورته ووایې چې دجومی ورځ ده.
دجومی له ورځی څخه وروسته.
داونی لومړی ورځ ، شنبه
داونی دوهمه ورځ ، یکشنبه
داونی دریمه ورځ ، دوشنبه
داونی څلورمه ورځ ، سه شنبه
داونی پنځمه ورځ ، چهار شنبه
داونی شپږمه ورځ ، پنجشنبه
داونی اوومه ورځ جومه ده او ورته وواياست چې یوه اونی ۷ ورځی دي. اولـه زده کوونکو څخه داسې پوښتنې وکړئ.
داونی څلورمه ورځ څه نومیږي؟
داونی دریمه ورځ ............................ ؟
داونی شپږمه ورځ ............................؟
داونی لومړی ورځ ............................؟
تاسو په کومه ورځ ښوونځی ته نه ځی؟

ښاغلی ښوونکی پاملرنه وکړئ چې داونی دورځو په پیژندلوکې دورځو پرله پسي توب په نظر کې ونیـسئ او پـه زده کوونکو باندې مشق اوتمرین وکړئ.

۶۶

**د لوست عنوان: اوږد او لنډ، اونی او ورځی یې (۶۵– ٦٦) مخونه، نه ویشتم لوست**

**وخت: درې ساعته د لوست (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي، اوږده او لنډ شیان وپیژني او یو له بله سره یې پرتله کړي. د اونی ورځـــې او د اونی د ورځو په تسلسل پوه شي.

**اصطلاح ګاني:** اوږد، لنډ، د اونی ورځې، تسلســـل، شنبه، یکشنبه، دوشنبه، سه شنبه، چارشنبه، پنچشنبه او جمعه.

**فعالیتونه:** ښاغلی ښوونکي دې زده‌کــوونکي پــه ۳ ګروپونو وویشي د هر کـــروپ کـــورنی دنـــده دې د زده‌کوونکو د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، د هـــر ګروپ اشتباه ګاني دې په جلاء، جلاء توګه پر تختـــه باندې فهرست شي، د زده کوونکو یا د ښوونکي پـــه واسطه دې د قناعت وړ ځوابونه ورکړل شي بیـــا دې لاندې پوښتنې وشي.

لومړي ګروپ: موټر دروند دی او که بایسکل، قلـــم سپک دئ او که ستاسو د ریاضی کتاب؟

دویم ګروپ: میز دروند دی او که څـــوکی، تباشـــیر سپک دی او که ستاسو د پښتو کتاب؟

دریم ګروپ: چاینکه درنده ده او که پیالـــه؟ هندوانـــه سپکه ده او که منه؟

له لومړی ګروپ څخه: اسد په کور کې د دوو شـــیانو نومونه واخله چې یو یې دروند او بل یې سپک وي.

له دویم ګروپ څخه: احمد په ښوونځی کـــې د دوو شیانو نومونه واخله چې یو یې دروند او بل یې ســـپک وي.

له دریم ګروپ څخه: زلمي چاینکه ســـپکه ده او کـــه پیاله؟ هندوانه سپکه ده او که ناک؟

له دریم ګروپ څخه: محمود په تـــولګي کـــې د دوو شیانو نومونه واخله چې یو یې دروند او بل یې ســـپک وي.

۲–ښاغلې ښوونکی دې دوه زده کوونکي چې د یـــوه قد اوږد او د بل لنډ وي د ټولګی ومخې ته څنګ پـــه څنګ ودر وي او له زده کوونکو څخـــه دې پوښـــتنه وکړي تاسو د دې دوو زده کوونکو ترمنځ څه تـــوپیر وینئ؟ ښائی چې زده کوونکي ځواب ووایي. د یوه قـــد لنډ اود بل قد اوږد دی. که چیری ونشي ویلای ښاغلی ښوونکئ دی ورته ووائې. چې د یوه قد اوږد او د بـــل قد لنډ دی په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې یوه زده کوونکي ته ووائې : د خپل ټولګیوالو له منځ څخـــه د دوو تنو نومونه واخله چې د یوه قد اوږد او د بل قـــد لنډ وي، که چیری زده کوونکي یې ونه شي ویلای نو بیا دې بل زده کوونکي او یا دې په خپله ښـــوونکی د دوو زده کوونکو چې لنډ او اوږد قدونه ولري نومونـــه واخلي او د ټولګی مخې ته دې راوغواړي، څنګ پـــه څنګ دې یې ودروي. بیا دې یوه زده کوونکي ته دوه مختلف لرګوټي ورکړي. او هغه لرګـــوټي دې ســـره پرتله کړي ، د اوږد لرګوټي او لنډ لرګوټي نومونه دې واخلي او زده کوونکو ته دې وښيئي همدارنګـــه یـــوه

زده‌کوونکی ته دې دوه تاره ورکړي پرتله دې کړي. او بیادی نورو زده کوونکو تــه ور وښــیئي، پــه همــدې ډول زده‌کوونکو ته دې ووائي هغه دوه زده کوونکي چې پر یوه څوکۍ ناست دي خپلي لویښتې پرتله کړي چې د کوم یــوه لویښت اوږده او د کوم یوه لنډه ده په همدی ډول یوه بل زده‌کوونکی ته دې وویل شي چې د خپلو قــدمونو ســره د ټولګي اوږدې او لنډې خواوې معلومې کړي: په همدې ډول نورې پوښتنې دې وشي. ښاغلی ښوونکی دې پــر تختــه باندې د اوږد او لنډ خطونو رسم کولو سره، د اوږد او لنډ مفهوم زده‌کوونکو ته ور زده کړي او بیا دې د زده کوونکو پام د اړوند لوست ۶۵مخ ته راوګرزوي، شکلونه دې په ګروپي ډول یو له بله سره پرتله کړي او ودی ښیي.

**۳–مشق او تمرین:** د زده کوونکو پام دې د کتاب ۶۶مخ ته راوګرزوي د پوښتنې او ځواب په توګه دې د اونۍ ورځې له زده کوونکو څخه وپوښتي، زده کوونکي دې هغه کارتونه چې په هغو باندې د اونۍ ورځې لیکل شوي دي د تسلسل په شکل لکه شنبه، یکشنبه، دو شنبه، سه شنبه، چار شنبه، پنجشنبه او جمعه ترتیب کړي. ښاغلی ښوونکی دې د ورځــو نومونه هغو ته ور زده کړي او بیا دې په مختلفو ډولونو له هغو څخه پوښتنې وکړي لکه د لوست د کتــاب پوښــتنې او ځوابونو ته چې که زده‌کوونکي د نومورِ و سوالونو ځوابونه ونه ویلای شي نو ښاغلی ښوونکې دې مرسته ورسره وکړي.

**۴–ارزونه:** ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کــې دې ورسره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:** څوک ویلای شي چې ستاسو د ټولګي کومه خوا اوږده او کومه خوا یې لنډه ده؟

څوک وایي: د تختې کومه خوا اوږده او کومه خوایې لنډه ده؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي چې یو اوږد او یو لنډ خط رسم کړي.

زده کوونکي یو اوږد مستطیل او یو لنډ مستطیل رسم کړای شي.

**ذهنیت:** د اوږد والي له پرتله کولو، د اوږد او لنډ په پوهیدلو او تشخیص کولو سره د زده کوونکو په ذهن او فکر کــې بدلون راځي د کار د آسانتیا لپاره کار ورڅخه اخلي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي د اوږد او لنډ له پیژندلو او پوهیدلو څخه په ورځني ژوند کې ګټه اخلي.

**۵–کورنۍ دنده:** هر یو زده کوونکی دې یو اوږد او یو لنډ خط په خپلو کتابچو کې رسم کړي او هم یو لنډ او یو اوږد لرګوټې دې له ځانه سره راوړي.

**د لوست عنوان:** له(۲۰-۲۹) پورې عددونو پېژندل
**مخ:** (٦٧)، یو ویشتم لوست
**وخت:** درې (۴۵ دقیقه یې) ساعتونه
**هدفونه:** زده کوونکی وکړای شي د( ۲۰-۲۹) پورې عددونه وپیژني یویز او لسیز یې تشخیص کړای شي.
**اصطلاح ګاني:** له ۲۰ ځخه زیات عددونــه، یــویز، لسیز، لس دانې یې بنډلونه، لرګــوټي، زده کــوونکي، پنسلونه او نور.
**فعالیتونه:**
۱-ښوونکی دې زده کــوونکي پــه درو ګروپونــو ووېشي. د هر ګروپ کــورنی دنــده دې وګــوري. تېروتنې(اشتباهات) دې اصــلاح کــړي او د قناعــت وړځوابونه دې ورکړای شي. بیا دې ښوونکی لانــدې پوښتنې وپوښتي.
لومړی ګروپ: دوه چوکاټونه چې یو یې لنډه او بل یــې اوږد وي وښایاست؟
دویم ګروپ: دوه مزی(تارونه) چې یویې لنډه او بل یې اوږد وي، راوښایاست؟
دریم ګروپ: ستاسې د ټولګی کومــه خــوا اوږده او کومه خوا یې لنډه ده، راوښیاست؟
لومړی ګروپ: احمده: په اونۍ (هفته) کې یوه ورځ ده چې تل په هغه ورځ رخصتي وي او ښوونځی ته نــه ځي هغه کومه ورځ ده نوم یې واخله؟ د جمعې ورځ.
د دویم ګروپ ځخه دې اسد ووایي چې د اونۍ دریمه ورځ کومه ورځ ده نوم دې یې واخلي؟ دوشنبه.
دریم ګروپ ځخه دې محمود ووایي چې د اونۍ دویمه ورځ کومه ورځ ده نوم دې واخلي؟ یکشنبه.
۲-ښوونکی دې ۲۰ دانې لرګوټي د ځپل میز پر ســر باندې کښیږدي. له یوه زده کوونکي ځخه دې وغواړي چې راشي او د لسیزو بنډلونه دې بیل کړي او د یــوه بنډل په ځیر دې په یوه مزي باندې وتړي. بیا دې لــه نورو زده کوونکو ځخه وپوښتي چې ځو لسیز بنډلونــه دي؟ امکان لري ووایي چې دوه لسیز بنډلونه. هغــوی دې بیا یو ویشت لرګوټي د میز د پاسه کښېږدي اولــه بل زده کوونکي ځخه دې وغــواړي چــې راشــي او لرګوټي دې د بنډل په شکل په یوه مزي باندې وتړي او په لسیزو دې جلا کړي. کله چې زده کوونکي دغــه کار وکړنو بیا دې ښوونکی له بل زده کوونکي ځخــه پوښتنه وکړي چې: پرته له لسیزو بنډلونو ځخه، نور ځو لرګوټي په میز باندې پاتې دي؟ هغه به و وایي چې یــو لرګوټی، په همدې ترتیب دې دوه ویشت لرګوټي پــر میز باندې پریږدي او له یوه بل زده کوونکي ځخه دې وغواړي چې لس، لس لرګوټي دې بنډل کړي او ودې ګوري چې پرته له لس دانه یې بنــډلونو ځخــه ځــو لرګوټي پر میز باندې پاتې دي. هغه به و وایي چې دوه نور لرګوټي. په همدې ترتیب دې دغې عملیې تــه تــر ۲۹ پورې ادامه ورکړي او په ګروپي توګــه دې زده کوونکي بنډلونه وتړي او کار دې وکــړي. بیــا دې ښوونکی زده کوونکو ته ووایي چې ۱ او دوه لسو تــه ۲۱، ۲ یو او دوه لسو ته ۲۲، ۳ یو او دوه لسو تــه ۲۳،... ۹ یو او دوه لسو ته ۲۹ و وایــي. دغــه دې دوی ته ور زده کړي او د زده کوونکو له خوا دې پر توره دره باندې ولیکل شي. بیــا دې زده کــوونکي د


شپږم فصل

دعددونو شمیرل، لوستل اولیکل تر۹۹ پورې اوهم دیویز او لسیزوپېژندنه.

یو دیرشم لوست

هدف: ددوورقمي عددونو پېژندنه چې له ۲۰ ځخه زیات اوهم په هغوي کې دیویزو او لسیزو پېژندنه

| | یویز | لسیز |
|---|---|---|
| ۲۱ | ۱ | ۲ |
| ۲۲ | ۲ | ۲ |
| ۲۳ | ۳ | ۲ |
| ۲۴ | ۴ | ۲ |
| ۲۵ | ۵ | ۲ |
| ۲۶ | ۶ | ۲ |

ښاغلی ښوونکی دهغوی دوه رقمي عددونو لیکل چې دلسیزو رقم یې دوه وي زده کوونکي ورباندې پوه کــړئ پــه همدې ډول تر۲۹ پورې په ګروپي ډول دزده کوونکو په واسطه بنډلونه جوړ او کار وکړئ.

٦٧

کتاب ٦٧مخ ته متوجه کــړي. د لســیزو او یــویزو بنډلونو تعداد دې پر هغوي باندې وشمېري او ورباندې دې ولیکي.
**۳-مشق او تمرین:** ښــوونکی دې د ضــرورت وړ لرګوټي چې ۲۹ دانې کیږي، د ټولګی پــه وړانــدې کیږدي. زده کوونکي دې په نوبت ســره راوغــواړي ترڅو هر یو یې په ترتیب سره د لسګون بنډل او یکــړ (یکتایي) په شکل ۲۱، ۲۲، ۲۳.... ۲۹ سره جــلا کړي او نورو زده کوونکو ته یې وروښیي او د هغــوی اړوند عدد دې د جدول په شکل چې یو یز او لسیز په کښې وښودل شي، ولیکي.
**۴-ارزونه:** ښوونکی دې د ځپل ډاډ لپــاره لــه زده کوونکو ځخه د نوی لوست په اړه پوښتنې وکړي او د ستونزو د موجودیت په صورت کــې دې مرســته او لارښوونه ورته وکړي.
**پوهه:** څوک وایي چې د ۲۴ عدد څولسګون او څو یو ګون لري؟
څوک وایي چې د ۲۸ په عدد کې د یــویز او لســیز عددونه کوم دي؟
**مهارت:** زده کوونکي دې له ۲۰ ځخه په زیاتو لرګوټو کې یو یز او لسیز سره بیل کړي او د هغوی اړوند عدد دې ولیکلای شي.
**ذهنیت:** د دغې پوهې په زده کولو او د ۲۰ ځخــه د زیاتو دوه رقمي عددونو په پېژندلو سره د زده کوونکو د فکر او ذهن تغییر پیدا کوي او خوښي ځرګندوي.
**ارزښت:** زده کوونکی تر ۲۹ پورې د عددونو په زده کړې سره له هغو ځخه په ځپلو ورځنیو چارو کې ګټــه اخلي .
**۵-کورنی دنده:** هر یو زده کوونکی دې د ۲۷، ۲۸ او ۲۹ په عددونو کې یویز او لسیز په ځپلــو کتــابچو کې په جدولونو کې ولیکي.

**د لوست عنوان: دیویز او لسیز پیژندنه**

**مخ: (٦٨)، دوه دېرشم لوست**

**وخت: دوه (۴۵ دقیقه يي) ساعتونه**

**هدفونه:** زده کوونکي دې وکړای شي د يــويز او لســيز رقمونه وپېژني، ويې لولي او ويې ليکي.

**اصطلاح گاني:** درې، لس، يويز او لسيز.

**د لوست مرستندويه مواد:** لرگوټي او د لرگوټو بندلونه.

**فعاليتونه:**

١–ښوونکی دې زده کوونکي پــه ٣ گروپونــو بانــدې وويشي. د يوه گروپ کورنۍ دنده دې د بل گروپ له خوا وکتل شي. په تېروتنو باندې دې آزاد بحث او مذاکره وشي بيا دې لاندې پوښتنې وپوښتل شي.

لومړی گروپ: دوه لسه او ۴ يو څو کېږي؟ ٢۴.

دويم گروپ: دوه لسه او ٨ يو څوکيږي؟ ٢٨.

دريم گروپ: دوه لسه او ٦ يو څو کيږي؟ ٢٦.

د لومړي گروپ څخه دې اسد ووايي چې په ٢۵ کې څــو لسه او څو يو دي؟

له دويم گروپ څخه دې احمد ووايي چې په ٢٩ کې څو لسه او څو يو دي؟

د دريم گروپ څخه دې محمود ووايي چې په ٢٠ کې څو لسه او څو يو دي؟

٢–ښوونکی دې ٣ لرگوټي په ميز باندې کښــېږدي. يــوه زده‌کوونکي ته دې ووايي چې راشي او د هغه نه دې لسگون بنډل جوړ کړي. د بل زده کوونکی څخه دې وپوښتي چې څو لسگون بنډلونه شول؟ کيدای شي هغه ځواب ورکــړي چې ٣ لسگون بنډلونه. په همدې ترتيب دی ٣١ لرگوټي پر ميز باندې کښيږدي او يوه بل زده کوونکی ته دې ووايــي چې له هغه څخه لسگون بنډلونه جوړ کــړي. کلــه چــې لسگون بنډلونه جوړ شول، ښوونکی دې له يــوه بــل زده کوونکي څخه وپوښتي چې پرته له لسگون بنډلونو څخه نور څو يو گون پاتې دي؟ هغه گوري او وايي چــې يــو بــل لرگوټی. په همدې ترتيب دې ٣۵ لرگوټي پر ميــز بانــدې کښيږدي او يوه بل زده کوونکی ته دې ووايي چې لس، لس داني دې د يوه تار په واسطه د بنډل په شکل وتړي بيــا دې له يوه بل زده کوونکی څخه وپوښتي چې پرته د لســگونو بنډلونو څخه نور څو لرگوټي دي؟

کيدای شي هغه ووايي چې پنځه لرگوټي. په همدې ډول دې نورې پوښتنې لــه زده کوونکــو څخــه وکــړي ترڅــو زده کوونکي هغه دوه رقمي عددونه چې لسيز يې درې وي په ښه توگه وپېژني. دغه فعاليت دې تر ٣٩ عدد پورې پــه زده کوونکو باندې په گروپي توگه کار وکړي.




بيا دې ښوونکی، زده کوونکي د کتاب ٦٨مخ ته متوجــه کړي او د جدول په واسطه لکه:

| يويز | لسيز |
|---|---|
| ٠ | ٣ |

او

| يويز | لسيز |
|---|---|
| ١ | ٣ |

يو يز او لسيز زده کوونکــو تــه ور زده کــړي او د زده کوونکو په واسطه دې مشق او تمرين سرته ورسوي.

**٣–مشق او تمرين:** د جدول په واسطه د يويز او لسيز لــه زده کولو څخه وروسته د يو گونو او لســگونو د بنــډلونو څخه په گټه اخيستنې سره دې تر ٣٩ عدده پورې بل جدول په زده کوونکو باندې ولولي او وليکي او جدولونه دې بشپړ شي ښوونکی دې د کار د جريان څارنه وکړي.

**۴–ارزونه:** ښوونکی دې د خپل ډاډ لپاره د زده کوونکــو څخه د نوي لوست په اړه پوښتنې وکړي او د مشکلاتو پــه صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:** څوک وايي چې د ٣۵ عدد څو لسه او څو يو لري؟

**مهارت:** زده کوونکي دې په دوه رقمی عددونو کې چــې لسيز يې ٣ وي، يويز او لسيز دې د جدول په واسطه ســره بيل کړي او د هغو اړوند عدد دې وليکلای شي.

**ذهنيت:** د دوه رقمی هغه عددونو په پوهيدو سره چې لسيز يې ٣ وي، د زده کوونکو فکر او ذهن تغيير پيدا کوي اود خوښۍ څرگندوني کوي.

**ارزښت:** تر ٣٩ پورې د عددونو پــه پوهيــدلو ســره زده کوونکي له هغه څخه په ورځنيو چارو کې کار اخلــي او د شيانو په رانيولو کې ستونزه نه ويني.

**۵–کورنۍ دنده:** هر يو زده کوونکی دې په ٣٢، ٣۴، ٣٧ او ٣٨ عددونو کې د جدول په واسطه يويز او لسيز وښيي او پخپلو کتابچو کې دې وليکي.

**د لوست عنوان: د یویز او لسیز پېژندنه**

**مخ: (٦٩)، درې دیرشم لوست**

**وخت: درې (۴۵ دقیقه یې) ساعتونه.**

**هدفونه:** زده‌کوونکي د ۳۹ څخه زیات دوه رقمي عددونه ولیکلی او ولوستلی شي.

**اصطلاح ګاني:** یویز، لسیز، ۴ لس.

**د لوست مرستندویه مواد:** لرګوټي او د لرګوټو بنډلونه.

**فعالیتونه:**

۱–زده کوونکي دې په ۳ ګروپونو بانـدې وویشـي. کورنۍ دنده دې د ښوونکي له خـوا وکتـل شـي. د تېروتنو په اړه دې سمې لارښوونې ورته وشي. لانـدې پوښتنې دې په نوبت سره له ګروپونو څخـه وپوښـتل شي.

لومړی ګروپ: ۳ لسه او ٦ یو څو کیږي؟

دویم ګروپ: ۳ لسه او ۸ یو څو کیږي؟

دریم ګروپ: ۳ لسه او ۷ یو څو کیږي؟

د لومړي ګروپ څخه دې محمود ووایي چې د ۳۴ په عدد کې څو لس او څو یو دي؟

د دویم ګروپ څخه دې احمد ووایي چـې د ۳۰ پـه عدد کې څو لسګونه او څو یوګون دي؟

د دریم ګروپ څخه دې اسد ووایي چې د ۳۵ په عدد کې څو لسګون او څو یو ګون شته دي؟

۲–ښوونکی دې ۴۰ لرګوټي پر میز باندې کښېږدي. یو زده کوونکی دې ووایي چې راشـي او هغـه دې د لسګونو بنډلونو په څېر په مزي وتړي بیـا دې د بـل زده‌کوونکي نه پوښتنه وکړي چې څو د لسو بنډلونـه دي؟ ممکن ځواب ورکړي چې څلور د لسو بنډلونـه. بیا دې ۴۲ لرګوټي د میز پر سر کښېږدي او یوه بـل زده‌کوونکي ته دې ووایي چې د هغو څخـه د لسـو بنډلونه جوړ کړی. کله چې د لسو بندلونه جوړ شول، ښوونکی دې له بل زده کوونکي څخه وپوښتي چې څو لسیز بنډلونه او څو یویز لرګـوټي دي؟ زده‌کـوونکي لرګوټي ګوري او وایي چې ۴ د لسو بنډلونـه او دوه یودانه‌يي لرګوټي دي. په همدې ترتیب دې ۴۸ لرګوټي د میز دپاسه کښېږدي او یوه بل زده کوونکي تـه دې ووایي چې د دې لرګوټو څخه لس، لس دانې د بنډل په څېر په مزي وتړي، کله چې زده کوونکی دغـه کـار سرته ورسوي بیا دې له یوه بل زده کـوونکي څخـه پوښتنه وکړي چې د لسو د بنډل نه پرتـه نـور څـو لرګوټي شته؟ هغه ممکن ووایي چې ۸ لرګـوټي. پـه همدې ترتیب سره دوه رقمي عددونه چې لسـیز یـې څلور وي، کار وکړای شي. او همدارنګه دې څو نور راتلونکي لوستونه د ۹۹ تر عدده پورې په زده‌کوونکو باندې کار وشي ترڅو د یویز او لسیز ځایونـه ښـه د هغوی په فکر او ذهن کې ځـای ونیسـي. بیـا دې ښوونکی زده‌کوونکي د کتاب د پام وړ مخ ته متوجـه



درې دیرشم لوست

هدف: دیویزو او لسیزو درقمونو پېژندنه.

| | یویز | لسیز |
|---|---|---|
| ۴۰ | ۰ | ۴ |
| ۴۱ | ۱ | ۴ |
| ۴۲ | ۲ | ۴ |
| ۴۳ | ۳ | ۴ |

ښاغلی ښوونکی لکه تېر شوي لوست په دې لوست کې هم هغه عددونه پېژندل کیږي چې دلسیزو رقم یې ۴وي نوپـه دغه یو او یا دوه لوست وروسته په همدې ډول تر ۹۹ عددونو پورې دزده کوونکو په واسطه کار وکړئ ترڅو دیویزو اولسیزو ځایونه ښه وپېژنی او دزده کوونکو په ذهن کې ځای ونیسي.

۶۹

کړي. جدول دې پر تخته بانـدې زده کوونکـو تـه وروښیي او په هغوی دې مشق او تمرین وکړي.

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ۰ | ۴ |

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ۲ | ۴ |

**۳–مشق او تمرین:** دکتاب د ۴۹ مخ کې دې د یویزو او لسیزو بنډلونو تصویرونه تر ۴۹ عدد پورې پـه زده کوونکو باندې کار وشي او عددونه دې د جدول پـه واسطه پر تخته باندې د زده کوونکو له خوا کار وشي. ښوونکی دې د کار د جریان څارنه وکړي.

**۴–ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونکی ځان ډاډمن کړئ وي چې زده‌کوونکو نوی لوست زده کړی دی او کـه نه، له زده‌کوونکو څخـه دې پوښـتنې وکـړي او د مشکلاتو د موجودیت په صورت کې دې لازمي مرستې او لارښوونې ورته وکړي.

**پوهه:** څوک وایي چې په ۴۸ کې څو لسیز او څو یویز دي؟ څوک ویلی شي چې په ۴۵ کې څو لسیز او څو یـویز دي؟

**مهارت:** زده‌کوونکي د ۴ لسیزو او ۹ یـویزو اړونـد عدد ولیکلای شي. زده‌کوونکي پـه ۴ لسـیزو او ۷ یویزو پورې اړوند عدد ولیکلای شي.

**ذهنیت:** د هغه دوه رقمي عدد په زده کولو سره چـې لسیز یې ۴ وي د زده کوونکو ذهن تغییر پیدا کوي او له هغې څخه د خوښۍ څرګندونه کوي.

**ارزښت:** د پورتنی عدد په زده کولو سره زده‌کوونکي پخپل ورځنی ژوندانه کې له هغه څخه کار اخلی.

**۵–کورنۍ دنده:** هر یو زده کوونکی دې د ۴۵، ۴٦، ۴۷ او ۴۹ عددونو یویز او لسیز په ځانګړو جـدولونو کې وښیي او پخپلو کتابچو کې دې ولیکي.







**د لوست عنوان:** د یویز او لسیز پېژندلو مشق او تمرین
**مخ:** (٧٠- ٧١)
**وخت:** دوه (۴۵ دقیقه يي) ساعته
**هدفونه:**زده کوونکی د شکل او تصویرونو لـه مخــي دوه رقمي عددونه تر ۹۹ پورې ولوستلای شي او لیکلای شي.
**اصطلاح ګاني:** یویز، لسیز، یوګون، لسګون.
**د لوست مرستندویه مواد:** لرګوټي، د لرګوټو بنډلونه، کاني او نور.
**فعالیتونه:**
١-ښوونکی دې زده کوونکي په ٣ ګروپونو باندې وویشي. د هر ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ له خـوا وکتـل شي. په غلطیو او تېروتنو دې د زده کوونکو سره آزاد بحث او مذاکره وشي. د اصلاح او سمولو نه وروسته دې لاندې پوښتنې وشي.
لومړی ګروپ: ۴۷ څو لس او څو یو لرې؟
دویم ګروپ: ۴۳ څو لس او څو یو لرې؟
دریم ګروپ: ۴ لسیز او ۹ یویز څو کیږی؟
د لومړي ګروپ څخه دې اسد ووایي چې په ۴۴ کې څـو لس او څو یو دي؟ د دویم ګروپ څخه دې محمود ووایي چې ۴ لسیز او ۹ یویز څو کیږي؟ د دریم ګروپ څخه دې احمد ووایي چې ۴ لسیز او ۵ یویز څو کیږي؟
٢-ښوونکی دې یو د لسو بنډل او ۴ یودانه یي د میز پر سر کښېږدي او له یوه زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکـړي چې هغه څو کیږي؟ امکان لري چې زده کوونکي ووایي چې ١۴. همدارنګه دې ٢ د لسو بنډلونه او ۴ یوګون پر میـز باندې کښیږدي له بل زده کوونکي څخه دې وپوښتي چـې څو کیږي. زده کوونکي ممکن ځواب ورکړي چې ٢۴ که چېرې ئي ونه ویلی شول، ښوونکی دې ووایــي چــې ٢۴ کیږي. د یویزو د لومړي چوکاټ د مثـالونو حـل دې د ښوونکي او زده کوونکو له خوا په ګډه سره کار وشي. بیا دې په دویم چوکات باندې لومړی ګــروپ او پــه دریـم چوکاټ باندې دویم ګروپ او په څلورم چوکاټ باندې دې دریم ګروپ کار وکړي ترڅو په تشو ځایونو کې مناسـب عددونه ولیکلی شي. ښوونکی دې د کار د جریـان څخـه څارنه وکړي. پنځم یا وروستي چوکاټ دې پــه ځــانګړې توګه په زده کوونکو باندې کار وشي.
ښوونکی دې هغه هګۍ چې په ټکرۍ کې دي هر یو دې په یوه زده کوونکي باندې وشمېري او هغه هګۍ چې د ټکرۍ څخه د باندې دي هم په نورو زده کوونکو باندې وشمېرل شي. بیا دې له نورو زده کوونکو څخه وپوښتي چــې څــو ټکرۍ لس دانه يي او څو يي يو دانه يي دي؟ امکان لري چې زده کوونکي ځواب ورکړي چې ٣ لسی او ۴ یو دانه یی. که چېرې ستونزه ولري ښوونکی دې ووایي. بیا دې یــویز اولسیز په لاندې توګه زده کوونکو ته وروښیي.

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ۴ | ٣ |

په همدې ډول دې لس دانې مرۍ په یوه مزی کې واچوي. او ١٣ دانې مرۍ چې ګوښې اېښودل شویدي هم له یــوه زده کوونکي څخه وپوښتي چې څو لسګونی او څو یو ګوني دي. امکان لري چې زده کوونکی ځواب ورکړي چې یــو لسګونی او ٣ یوګوني دي. بیا دې هغه د بل زده کوونکي په واسطه په یوه جدول کې وښیي. که چېرې زده کوونکي جدول جوړ نکړای شو، ښوونکی دې دغه جدول پر تخته باندې هغوی ته ور زده کړي.

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ٣ | ١ |

٣-**مشق او تمرین:** په همدې مخ کې دې زده کوونکي د شکلونو او تصویرونو له مخې یویز او لسیز پیدا کړي پــه جدول کې دې ولیکي په داسې ډول چې زده کوونکي د هر شکل شیان وشمېري. بیا دې د هغو اړوند عدد د هغوی په اړوند جدول کې په تشو ځایونو کې پخپلو کتـابچو کــې ولیکي. ښوونکی دې د کار د جریان څارنه وکړي.
۴-**ارزونه:** د دې لپاره چې ښوونکي ځان ډاډمن کــړي د زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي. د مشکلاتو په صورت کې دې ورسره مرسته او لارښوونه وکړي.
**پوهه:** څوک وایي چې ٣ لسګون او ٨ یوګوني څو کیږي؟
**مهارت:** زده کوونکی دې د ۴٨ او ٣۴ په عددونو کې یو یز او لسیز په لاندې جدولونو کې و لیکلی شي.

| یویز | لسیز |
|---|---|
| | |

| یویز | لسیز |
|---|---|
| | |

**ذهنیت:** د یویز او لسیز په پېژندلو سره د زده کوونکو پــه فکر او ذهن کې بدلون را منځ ته کیږی. او یا د دوه رقمي عددونو د مقامي قیمت په درک او احساسو سره خوښــي څرګندوي.
**ارزښت:** د دوه رقمي عددونو په پوهېدلو سره زده کوونکي پخپلو ورځنیو چارو او په راکړه ورکړه کې له هغې څخــه ګټه اخلي .
۵-**کورنۍ دنده:** هر زده کوونکی دې د کتاب په ٧٠مـخ کې د پای له جدول څخه یویز او لسیز په خپلو کتابچو کې ولیکي.

**د لوست عنوان: مشق او تمرين**

**مخ: (۷۲-۷۳)**

**وخت: درې (۴۵ دقيقه يي) ساعتونه**

**هدف:** زده کوونکی تر ۹۹ پورې عددونه وليکلی شــي. د عددونو لړۍ (تسلسل) باندې وپــوهيږي او ۲، ۲ او ۳، ۳ کم او زيات کړای شي.

**اصطلاح ګانې:** عددونه، لړۍ يا تسلسل، کم او زيات.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي او کاڼي.

**فعاليتونه:**

۱-ښوونکی دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو باندې ووېشي. د يوه ګروپ کار دې د بل ګروپ له خوا وکتل شي. پــه اشتبا هګانو باندې دې آزاد بحث او مذاکره وشي او لاندې پوښتنې دې وشي.

| يوېز | لسيز |
|---|---|

لومړی ګروپ: ۹۶ څو لسګون او څو يوګون لري؟ په جدول کې يې وښياست.

| يوېز | لسيز |
|---|---|

دويم ګروپ: ۵۸ څو لسګون او څو يوګون لري؟ په جدول کې يې وښياست.

| يوېز | لسيز |
|---|---|

دريم ګروپ: ۷۶ څو لسه او څو يو دانه‌يي لري؟ په جدول کې يې وښياست.

د لومړی ګروپ څخه دې نذير ووايي چې ۵ لسه او ۹ يو څو کيږي؟ ۵۹. د دويم ګروپ نه دې اسد ووايي چــي ۴ لسه او ۵ يو څو کيږي؟ ۴۵. د دريـــم ګـــروپ نـــه دې محمود ووايي چې ۸ لسه او ۷ يو څو کيږي؟ ۷۸.

۲-ښوونکی دې ۹۹ لرګوټي د ميز پر سر کيږدي. يو زده کوونکی دې وروغواړي چې تر ۵۰ پورې وشميري او وې لولي. بيا دې بل زده کوونکی ور وغواړي او هغه تــه دې ووايي چې په هغه پسې دې د ۵۰ څخــه تـــر ۹۹ پـــورې وشميري او ودې لولي. په همدې ترتيب سره دې ۹۹ کاڼي پر ميز باندې کيږدي او يوه زده کوونکی ته دې ووايي چې تر ۴۰ پورې وشميري او وې لولي. بيا دې بل زده کوونکي ته ووايي چې د ۴۰ په ادامه تر ۷۰ پورې وشميري او ودې وايي. بيا دې دريم زده کوونکی ته ووايي چــې د ۷۰ پــه ادامه دې تر ۹۹ پورې وشميري او ودې وايـــي. بيـــا دې ښوونکی دغه جدول پر تخته بانـــدې رســـم کـــړي او د زده‌کوونکو په واسطه دې بشـــپړ کـــړی. د مشـــکلاتو د موجوديت په صورت کې دې مرسته او لارښـــوونه ورتـــه وشي.

| ۹ | | ۷ | | | ۴ | | | ۱ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | ۱۷ | | | ۱۴ | | | ۱۱ | |

د پورتنی جدول د بشپړيدو وروسته دې ښوونکی يـــو بـــل جدول چې ۹۹ خانې ولري پر تخته باندې رسم کړي. ځينې عددونه دې لکه چې د کتاب په ۷۲ مخ کې درکړل شويدی جدول کې وليکي او نورې تشې خانې دې په داسې حال کې چې تسلسل يکښې موجود وي پــه زده کوونکــو بانــدې بشپړې او ډکې شي.

**۳-مشق او تمرين:** زده کوونکي دې د کتاب ۷۳مخ تــه متوجه کړي. ښوونکی دې يو جدول پخپله بشپړ کړي او پر عددونو باندې دې يوازی ۲ ، ۲ ورزيات کړی لکه لاندې جدول.

| ۲۰ | | | | | ۱۰ | | | ۴ | ۲ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او زده کونکو ته دې ووايي چې وګورئ له ۲ څخــه پيــل شويدی او ۲، ۲ ورباندې زيات شويدي د همدې مــخ ۳ راتلونکی جدولونه دې په ګروپي توګه په زده کوونکو باندې کار وشي. دويم جدول دې لومړی ګروپ ته ورکـــړي او ودې وايي چې له ۲۰ نه شروع او ۲، ۲ دې کم کړي. او دريم جدول دې دويم ګروپ ته ورکړي او ورته دې و وايي چې ۳، ۳ زيات کړی. همدارنګه دې څلورم جدول دريـــم ګروپ ته ورکړي او هدايت دې ورته ورکړي چې ۳، ۳ کم کړي. ښوونکی دې د کار د جريان څخه څارنه وکړي.

**۴-ارزونه:** ښوونکی دې د خپل ډاډ لپاره د زده کوونکـــو څخه پوښتنې وکړي او د مشکلاتو د موجوديت په صورت کې دې مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:** څوک کولی شي چې د ۳ پر عـــدد بانـــدی د ۲، ۲ عددونه زيات کړي او تر ۱۱ پورې يې حســـاب کـــړي؟ څوک کولی شي چې د ۱۲ د عدد څخه ۳، ۳ کم کړي او تر ۳ پورې يې ولولي؟

**مهارت:** زده کوونکي دې د موجودو موادو په واسطه لـــه ۱۶ څخه د ۲، ۲ عددونه کم کړای شي، زده کوونکی دې د خپلو موادو په واسطه ۳، ۳ زيـــات او تـــر ۲۴ پـــورې وشميرلی شي.

**ذهنيت:** تر ۹۹ پورې په ليکلو او پوهيدلو سره زده کوونکي د خوښی احساس کوي.

**ارزښت:** د ۹۹ عدد پورې په زده کيدو او ليکلـــو ســـره زده‌کوونکي له هغې څخه پخپلو ورځنيو چارو کـــې کـــار اخلي.

**۵-کورنی دنده:** زده کوونکي دې په ۳ ګروپونو بانـــدې ووېشل شي. لومړی ګروپ دې د ۷ پر عدد باندې ۲، ۲ زيات کړي او تر ۱۵ پورې دې وشميري. دويم ګروپ دې له ۲۱ څخه ۳، ۳ کم کړي تر ۳ پورې دې وشميري. دريم ګروپ دې په ۹ باندې ۳، ۳ ور زيات کړي تر ۲۷ پورې دې وشميري.


خلور دیرشم لوست

هدف: په افغانستان کې درواجي بانکنوټونو ارزښت اوپېژندنه.

ښاغلی ښوونکی دې تر ۵۰ افغانیګی پورې بانکنوټونه له خپل ځانه سره ولري او زده کوونکو ته دې وښيي او وروسته دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي که چیرې تاسو پیسي هتی وال ته ورنکړي قلم یا کاغذ درکوي؟

۷۴


هدف:مشق اوتمرین په بانگنوټونو کې دیویزو او لسیزو پیژندنه.

۱-۵۴ له پنځه لسیاوڅلور یوونو څخه عبارت ده او په پیسو کې پنځه دلسیو او **څلور یوه افغانیزه لوټونه دي.**

۲-۴۲څو دلسیو او څو یوه **افغانیزه لوټونه کیږي؟**

۳- په ۷۵ کې څو لسه او څو یوونه دي؟

۴-داسې عدد ولیکئ چې ۷ لسی او۸ یودانه یې ولري.

۵-داسې عد ولیکئ چې ۹ لسئ او۵ یو دانه یې ولري.

٦- شپږلسی چې له اووه سره **جمع کړو څو کیږي ولیکئ.**

۷- دري لسی او **نه یو دانه یې زیات دي که نه لسی او دري یودانه یې.**

۸- یو لسي او شپږ یودانه یې زیات دي که شپږ لسي.

۹- پنځه لسي او دري یودانه یې زیات دي که شپږ لسیه.

۱۰-داسې عدد ولیکئ چې په هغه کې شپږ لسه، او یو صفر شتوالي ولري.

ښاغلی ښوونکی دیویزو او لسیزو دپیژندنې مشق اوتمرین دزده کوونکو په واسطه کار وکړئ مثلاً له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وشي چې ۳۵ له څو لسیو او څو یویزو څخه جوړ ده او ځوابونه دې زده کوونکی په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

۷۵

**د لوست عنوان: د بانک نوټونو پیژندنه**
**(۷۴– ۷۵) مخونه، څلور دیرشم لوست.**
**وخت: (۴۵ دقیقې) دوه د لوست ساعتونه**

**هدفونه:** په افغانستان کې د مروجه بانک نوټونو پیژندنه او ارزښت، په بانک نوټونو کې د یویز و او لسیزو پیژندنه.

**د لوست مرستندویه مواد: د یوی افغانۍ، ۲ افغانیو، ۵ افغانیو، ۱۰ افغانیو، ۲۰ افغانیو او ۵۰ افغانیو نوټونه.**

**فعالیتونه:**

**۱**–ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو وویشي د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه ولیدل شي، د هر ګروپ اشتباه ګانې دې فهرست شي، او د زده کوونکو له خوا دې بحث او خبري ورباندې وشي، د ستونزو په صورت کې دې ښاغلی ښوونکی صحیح ځوابونه ووائي بیا دې لاندې پوښتنې وکړي. لومړی ګروپ: د ۲، ۲ په زیاتولو سره لاس ته راغلی عدد لړ کیږي او که زیاتیږي؟ دویم ګروپ: د ۳، ۳ په لږ کولو سره لاس ته راغلی عدد زیاتیږي او که کمیږي؟ دریم ګروپ: د ۳، ۳ په زیاتولو سره حاصل شوی عدد زیاتیږي او که کمیږي. د لومړی ګروپ څخه اسد دې ووایي له ۵۵ څخه مخکې کوم عدد دی؟ له دویم ګروپ څخه بشیر احمد دې ووایي له ۸۶ څخه وروسته کوم عدد دئ؟ له دریم ګروپ څخه نذیر احمد دې ووایې: د ۷۷ او ۷۹ په منځ کې کوم عدد دئ؟

**۲**–ښاغلی ښوونکی دې د ۵۰ افغانیو پورې بانک نوټونه له خپل ځان سره ولري هر یو بانک نوټ دې په وار سره زده‌کوونکو ته وښیئي، د بانک نوټونو افغانی ارزښت دی له زده‌کوونکو څخه وپوښتې، او بیا دې ورته ووایې که چیري تاسو هتي وال ته پیسي یا افغانی ورنکړئ تاسوته قلم یا کتابچه درکوي؟ ښایې چې هغوی ځواب ووایي نه یې راکوي. بیا دې یو زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووایې: له دې نوټونو څخه د ۵ افغانیو نوټ جلاء کړه او زده کوونکو ته یې وښیه، یوه بل زده کوونکي ته دې ووایې چې د ۱۰ افغانیو نوټ واخله او زده کوونکو ته یې وښیه، او همدارنګه یو دریم زده کوونکی دې راوغواړي په یوه لاس کې دې د ۱۰ افغانیو نوټ او په بل لاس کې دې د ۲۰ افغانیو نوټ ورکړي او له هغه څخه دې پوښتنه وکړي کوم یو یې زیات دي او د کوم یوه په واسطه زیات پنسلونه اخستلای شئ؟

په همدی ډول بل زده کوونکی دې راوغواړي د ۵۰ افغانیو او ۲۰ افغانیو نوټونه دي یو له بله سره پرتله کړي. ښاغلی ښوونکی دې پام وکړي ترڅو ټول زده کوونکی له یوی افغانۍ څخه نیولي تر ۵۰ افغانیو پوری ټول مروجه بانک نوټونه په صحیح او سمه توګه وپیژني. او د هغو هر یوه په ارزښت پوه شي. بیا دې د زده کوونکو پام د کتاب ۷۴مخ ته راوګرزوي او هغه نوټونه چې په اړوند مخ کې چاپ شوي دي، یو، یو دې له زده کوونکو څخه وپوښتې او هغو ته دې وروپیژني. او ورته ودې وایي که چیری مونږ پیسی یا افغانۍ ونه لرو آیا قلم، پنسل، بوټ، جامې او نور شیان رانیولای شو.

**۳**–**مشق او تمرین:** د زده کوونکو پام دې د کتاب ۷۵مخ ته راوګرزول شي. په لومړنۍ وار کې دې عبارتې پوښتنې د هر زده‌کوونکی په واسطه ولوستل شي او د هرې پوښتنې مفهوم دې له زده‌کوونکو څخه وپوښتل شي، له هغه وروسته دې په ګروپي ډول د زده کوونکو په واسطه حل او کار وشي. ترڅو زده کوونکي په بانک نوټونو کې یویز او لسیز په دقیقه توګه وپیژني او تشخیص یې کړي.

**۴**–**ارزونه:** ښوونکي دې د خپلی ډاډینی لپاره د بانک نوټونو په اړه له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي او د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:** څوک وایي یو نوټ د لس افغانیو زیات دی او که یو نوټ د ۲۰ افغانیو؟ څوک وایي چې یو نوټ د شل افغانیو لږ دی او که یو نوټ د ۵۰ افغانیو؟

**مهارت:** زده کوونکي د بانک نوټونو په واسطه شمیرو کړای شي او هم د ځینو شیانو بیه وویلای شي.

**ذهنیت:** د بانک نوټونو او د هغوئ د ارزښت په پیژندلو سره، د زده کوونکو ذهن او فکر بدلون مومي او هڅه کوي ترڅو زیات نوټونه له ځان سره ولري.

**ارزښت:** زده کوونکي کولای شي چې له نوټونو څخه په کار اخیستلو سره په رانیولو او پلورلو کې د شیانو سمه بیه ورکړي او واخلي.

**۵–کورنۍ دنده:** لاندې پوښتنه حل کړئ.

**داسې عدد ولیکئ چې یویز یې صفر او لسیز یې شپږوي.**

**د لوست عنوان: مشق او تمرين**

**(۷٦، ۷۷، ۷۸) مخونه**

**وخت: د لوست درې (۴۵ دقيقه يې) ساعته**

**هدفونه:** زده كوونكي وكړاى شي دوه رقمي عددونه وشميري او پرتله يې كړاى شي. هغه عددونه چې په تورو ليكل او نومول شوي دي ولولي او تشخيص يې كړي.

**اصطلاح ګاني:** پرتله، عددونه، دوه رقمي.

**د لوست مرستندويه مواد:** لرګوټي، د لرګوټو بنډلونه.

**فعاليتونه:**

۱-ښاغلي ښوونكى دې زده كوونكي په درې ګروپونو وويشي او د هر ګروپ كورنى دنـدې دې وګـوري. كومې اشتباه ګانې چې زده كوونكو كړې دي د هغـو صحيح ځوابونه دې ووايي او بيا دې لانـدې پوښـتنې وكړي.

لومړى ګروپ: په تاسو كې څو تنه دوه ګيزه افغـانۍ لري؟ وښياست.

دويم ګروپ: په تاسو كې څو تنه پنځه ګيـزه افغـانۍ لري؟ وښياست.

دريم ګروپ:له تاسو څخه څوتنه لس ګيـزه افغـانۍ لري؟ وښياست.

له لومړى ګروپ څخه دې اسد ووايي چـې پـه ۲۵ افغانيو كې څو نوټونه د لسو او څو نوټونه د ۵ افغـانيو شته دي؟

له دويم ګروپ څخه دې احمد ووايي چـې پـه ۳۲ افغانيو كې څو نوټونه د لسو او څو نوټونه د ۲ افغـانيو دي؟

له دريم ګروپ څخه دې محمود ووايي چـې پـه ۵۱ افغانيو كې څو نوټونه د لسو او څو نوټونـه يـوګيزې افغانۍ دي؟

۲-ښاغلى ښوونكى دې يو زده كوونكى د تختې مخې ته راوغواړي او هغه ته دې ووايي چې ۸۵ پـر تختـه

هدف:دعددونو دشميرلو او پرتله كولو مشق اوتمرين.

۱- لاندې عددونه ولولئ.

۲۷ ، ۳٦ ، ۷٦ ، ۳۲ ، ۴۸ ، ۹۴ ، ٦۰

۲-كوم عدد دئ چې درى لسه او۵ يو دانه يې ولري.

۳- هغه عدد كوم ده چې ٦ لسه لري.

۴- اوياڅو لسه او څو يودانه يې لري.

۵- هغه عدد وليكى چې څلور لسه او صفر يويز ولري.

٦- ۳۵ زيات دي كه ۵۳ هغه دهغې علامې په واسطه چې پيژنئ وښياست.

۷- دلاندې عددونوپه منځ كې د(< ،>يا=)مناسب علامه وليكئ.

| | |
|---|---|
| ۹۷ | ۶۴ |
| ۶۹ | ۳۸ |
| ۷۹ | ۹۷ |
| ۴۹+۱ | ۵۰ |
| ۱۲ | ۲۵ |
| ۲۴+۴ | ۲۸ |

۸- څو يويزه ۱۵ كيږي او وواياست چې ۱۵ څو يودانه يې او څو لسه كيږي.

ښاغلي ښوونكى دې پوښتنې دزده كوونكو په واسطه كار اوحل كړي او ښاغلى ښوونكى دې له زده كوونكـو څخـه صحيح ځواب په لاس راوړي.

۷۶

باندې وليكه، په همـدې ډول بـل زده‌كـوونكى دې راوغواړي او هغه ته دې ووايي چې ٦۵ پر تخته باندې وليكه، همدې فعاليت ته دې ادامه وركړي ترڅو ټـول زده كوونكي په كې برخه واخلي او همدارنګه عددونه ولوستلاى او وليكلاى شي كه چېرې كوم زده كوونكى ستونزې ولري مرسته او لارښوونه دې ورته وشي.

وروسته دې ښاغلى ښوونكى لكـه د ۳۷، ۸۵، ۴۲، ۹۵، ٦۷ او ۲۸ عددونـه پـر تختـه وليكـي او زده‌كوونكي دې په وار سره و غواړي او د هغـو پـه واسطه دې ولولي او همدارنګه ښاغلى ښوونكى دې د ۳۲ عدد په تخته وليكي، د دوه ديرش كلمه دې هـم هغوى ته ور زده كړي او ورته دې ووايي چې عدد پـه حروفو باندې ليكل شوي دي. كه چيرى زده كوونكي وكولاى شي چې ۲۰، ۱۰، ۳۰، او ۴۰ عددونه پـه خپله پر تخته وليكي ښه به وي او كه چېرې سـتونزې ولري ښاغلى ښوونكى دې مرسته او لارښوونه وكړي.

وروسته دې د زده كوونكو پام د كتاب د اړوند لوست يعنې ۷٦ مخ ته راوګرزوي لومړۍ او دويمه عبـارتي پوښتنې دې لومړي ګروپ ته، دريمه او څلورمه پوښتنه دې دويم ګروپ ته او همدارنګه پنځمـه او شـپږمه پوښتنه دې دريم ګروپ ته وركړي چې هغوى د پوښتنو

عبارت ولولي، او ځوابونه يې په خپلو کتابچو کې وليکي. د ۷ ګڼې پورې اړوند پوښتنې دې چې دوه رقمي عددونه دي د پرتلې لپاره ورکړلي شي. د لرګوټو د لسيزو او يويزو له بنډلونو څخه په ګټه اخستنې سره دې کار وکړي او هم د (۷۷) بل مخ دې د کورنۍ دندې په توګه ورکړل شي ترڅو زده کوونکي عددونه په خپلو کتابچو کې د اړوندو کلمو سره ونښلوي.

**۳–مشق او تمرين:** درېم مخ يعنې (۷۸) چې د يوه رقمي عدد جمع کول له يوه رقمي او دوه رقمي عددونو سره دي. ښاغلي ښوونکي دې د ۱۸=۱۴+۴ او ۶=۳+۳ مثالونه زده کوونکو ته حل کړي او نورې پوښتنې دې د زده کوونکو په واسطه حل کړي په داسې حال کې چې د پوښتنو په حل کې د ګوتو او لرګوټو څخه کار واخلي، مثلاً: زده کوونکي دې د ۳+۱۵ د جمعې حاصل پيدا کړي په داسې حال کې چې ۱۵ خپلې حافظې ته سپاري او په هغه باندې ۳ ګوتې يا ۳ لرګوټي زيات کړي، ترڅو ۱۵ په لاس راشي، په همدې ډول زده کوونکو ته دې ووايي چې لوی عدد خپلې حافظې ته وسپاري، او کوچنی عدد په هغه باندې ور زيات کړي. زده کوونکي دې په دوو ګروپونو وويشل شي، يوه، يوه پوښتنه دې د هغو په واسطه کار وشي، او ښاغلی ښوونکی دې د کار کولو د لرۍ څارنه وکړي.

**۴–ارزونه:** د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان داډه کړي له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي.

**پوهه:** څوک ويلای شي چې د ۸۷ او ۷۸ په دوو عددونو کې کوم يو ډېر دی څوک د ۱۵+۴ پوښتنه جمع کولای شي؟

**مهارت:** زده کوونکي د ۷۹ او ۹۷ عددونه پرتله کړای شي او د ۸+۱۲ او ۷+۱۳ پوښتنې حل کړای شي.

**ذهنيت:** د دوه رقمي عددونو پرتله کولو، او د يوه رقمي عددونو له يوه رقمي او دوه رقمي عددونوسره د جمع کولو په پوهيدلو سره د زده‌کوونکو ذهن او فکر بدلون پيدا کوي او په رياضي کې د زياتې پلټنې هڅه کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي د دوه رقمي عددونو او د جمعي د عمليې په سرته رسولو سره ځانونه پوه کوي او په ورځني ژوند کې کار ورڅخه اخلي.

**۵–کورنۍ دنده:** د لوست د کتاب ۷۷ مخ چې د عددونو نښلول د هغه د اړوند کلمو سره ده زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په توګه ورکړل شي.

**د لوست عنوان: د دوه رقمي عددونو جمع کول له یوه رقمي عدد سره**

**۷۰ مخ، پنځه دیرشم لوست**

**وخت: (۴۵ دقیقې) یې درې د لوست ساعتونه**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي د دوه رقمي عددونه لــه یوه رقمي عدد سره جمع کړي او ورباندې پوه شي.

**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي، یو رقمي، جمع.

**د لوست مرستندویه مواد:** ورې ډبرې، قلمونه، لرګوټي، زده کوونکي او نور.

**فعالیتونه:**

۱-ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو وویشي د هر ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګــروپ پــه واسـطه وګوري اشتباه ګاني دې د زده کوونکــو او یــا ښــاغلي ښوونکي په واسطه اصلاح شي بیــا دې لانــدې پوښــتنې وکړي.

لومړی ګروپ: او یا څو لسیزه او څو یویزه لــري؟ دویــم ګروپ: ۷۵ ډیر دي او که ۵۷ ؟کومه نښه چې پیژنـــي د هغې په واسطه يې وښیاست. دریم ګروپ: ۴+۲۴ لـږ دي او که ۲۷ د نښې په واسطه يې وښیاست.

له لومړي ګروپ څخه دې محمود یو عدد ولیکي چې دوه لسیزه او پنځه یویزه ولري او ودې لولي .له دویم ګــروپ څخه دې اسد د یوه عدد نوم واخلي مثلاً هغه وایي دوه، له همدې ګروپ څخه دې نذیر له هغه څخه د ۲ پــه انــدازه زیات د یوه عدد نوم واخلي.

په همدې ډول له دریم ګروپ څخه دې احمد د یوه عــدد نوم واخلي مثلا هغه وائي ۵۶، له همدې ګروپ څخــه دې زلمی د ۳ په اندازه لږ د یوه عدد نوم واخلي که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري ښوونکي دې مرسته او لارښـــوونه وکړي.

۲- ښاغلی ښوونکی دې ۱۳ دانې لرګوټي چې یو بنــډل د لسي او ۳ یو دانه يې وي د ټولګي په یوه ګوټ او ۴ دانې لرګوټي دې د ټولګي په بل ګوټ کې کیــږدي او یــو زده کوونکی دې را وغواړي. او ورته ودې وایــي چــې هغــه لرګوټي یو له بله سره جمع (یوځای) کړه. کلــه چــې زده کوونکي ۴ لرګوټي له ۱۳ لرګوټو سره یو ځای کړل، لــه دویم زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي چې اوس څــو لرګوټي شول؟ هغه لرګوټي شمیري او ځواب وائي، چې ۱۷ لرګوټي شول. بیا دې له دریم زده کوونکي څخه پوښـــتنه وکړي. چې د لسو بنډل څو هم هغه بنډل دی. وایه چې ۴ لرګوټي له کوم لرګوټو سره یوځای شول، ښائي چې هغــه وائي چې ۴ لرګوټي له ۳ لرګوټو سره یوځـــای شـــول ۷ لرګوټي شوي دي؟ چې په حقیقت کې ټولــه ۱۷ لرګــوټي شول لکه لاندې شکل.

په همدې ډول دې د یوه بل زده کوونکي پــه واســطه ۲ لرګوټي له ۱۷ لرګوټو سره جمع کړي. ترڅو زده کوونکي په عیني توګه وویني، چې یویز له یویزو سره جمع شوي دي. او دې فعالیت ته دې دوام ورکړل شي ترڅو زده کوونکي د یوه رقمي عدد له دوه رقمي عدد سره د جمع کولــو پــه طریقې باندې پوه شي. بیا دې ښوونکي د زده کوونکو پام د کتاب ۷۹ مخ ته راوګرزوي لکه ۱۵=۳+۱۲ دې د شکل له مخې پر تخته باندې حل کړي او څو نورې پوښتنې دې د

اووم فصل

دوه رقمي عددونو جمع کول له یوه رقمي عدد سره

پنځه دیرشم لوست

هدف: زده کوونکي وکولای شي دوه رقمي عدد له یورقمي عدد سره جمع کړي او د جمع کولو په طریقه پوه شي.

۱۲ + ۳ = ۱۵

- ۱۲ + ۳ = ۱۵
- ۶۱ + ۴
- ۳۴ + ۳
- ۷۲ + ۵ = ۷۷
- ۴۴ + ۲ =
- ۳۲ + ۵ =
- ۳۵ + ۴ =
- ۱۷ + ۶ =
- ۹۱ + ۸
- ۷۳ + ۵
- ۳۶ + ۲
- ۹۵ + ۱
- ۷۱ + ۴ =
- ۶۲ + ۶ =
- ۹۶ + ۲ =
- ۵۲ + ۳ =

ښاغلی ښوونکی د دوه رقمي عدد جمع کول له یو رقمي عدد سره لومړی د شکل په واسطه لکه په پورته ډول چې ښودل شوي دي خو پوښتنې حل کړئ او وروسته افقي او عمودي ډولونه داسې څرګندی کړئ ۱۲ او ۳ یو د بل تر لاندې اویاځنګ په څنګ لیکو او وروسته یویز له یویز او لسیز له لسیز سره داسې جمع کوو ۳ او ۲ دواړه یویز دي هغه سره جمع کوو چــې ۵ کیــږي، او ۵ دیویزو لاندې لیکو دیوه عدد چې په لسیزو کې شتوالی لري او د۳ ترڅنګ په لسیزو کې بل عدد نشته چې له یوه سره جمع شــي نو په خپله یو د لسیزو په ځای کې د جمعې په حاصل کې لیکو. په عمومي توګه د جمعې حاصل ۱۵ کیږي. لکه پورته پوښتنه نورې پوښتنې د زده کوونکو په واسطه حل او کار و کړئ او هم پوښتنې دې خپلو کتابچو ته نقل او حل کړي.

۷۹

زده کوونکو په واسطه حل کړای شي.

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایې، کله چې د یوه رقمي عدد له دوه رقمي عدد سره د افقي او عمــودي پــه شکل جمع کوي، تاسو پام وکړئ چې ۳ او ۲ داوړه یــویز دي یو له بله سره جمع شوي دي چــې ۵ کیــږي، او ۵ د یویزو په ځای کې لیکو، او د (۱) عدد چې د لسیزو په ځای کې قرار لري د ۳ تر څنګه بل عدد نشته چې له یوه ســره جمع شي. نو په خپله یو چې د لسیزو په ځای کــې دی د جمعې په حاصل کې، د لسیزو په ځای کې لیکو چــې پــه عمومي توګه د جمعې حاصل ۱۵ کیږي په همــدې ډول د زده کوونکو په واسطه دې حل او کار وشي.

**۳-مشق او تمرین:** په همدې مخ کې دې لومړی چوکاټ د لومړي ګروپ په واسطه، دریم چوکاټ د دویم ګروپ پــه واسطه او څلورم چوکاټ د دریم ګروپ په واســطه کــار وشي او ښاغلی ښوونکی دې د کار کولو د جریان څارنــه وکړي.

**۴-ارزونه:** د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکــړي د ســتونزو پــه صورت کې دې مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:** څوک وایي چې د ۵+۱۴ جمعې په عملیه کې کوم عددونه یو له بله سره جمع کیږي؟

څوک وایي چې د یوه رقمي او دوه رقمي عددونو د جمعې په عملیه کې لومړی کوم دوه عددونه یو له بله سره جمــع کیږي.

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې په صحیح توګه حل کړي.

۱۵+ ۳ = ؟ او ۱۲ + ۴ = ؟

**ذهنیت:** د جمعې د نوې او آسانه طریقې په زده کولو سره، د زده کوونکو په ذهن او فکر کې بدلون راځي د ریاضي د زده کړې لپاره لا نور هم چمتو کیږي.

**۵-کورنۍ دنــده:** زده کــوونکي دې د ۷۹ د وروســتي چوکاټپوښتنې په خپلو کتابچو کې حل او له ځانونو سره دې راوړي.

**د لوست عنوان: مشق او تمرین د دوه رقمي عددونو جمع له یوه رقمي عدد سره**
**(۸۰-۸۱) مخونه**

**وخت: د لوست (۴۵ دقیقه یې) دري ساعته**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي د دوه رقمي او یو رقمي عددونو د جمعې پوښتنې حل کړي.

**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي، یو رقمي، جمع.

**د لوست مرستندویه مواد:** یو دانه یې لرګوټي، د لرګوټو بنډلونه، وړې ډبرې او نور د چاپیریال مواد.

**فعالیتونه:**

۱-ښاغلي ښوونکي دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو باندې وویشي د هر ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه ولیدل شي.

لومړي ګروپ: د ۵+۷۲ د جمعې په عملیه کې لومړی کوم دوه عددونه یو له بله سره جمع کیږي؟ دویم ګروپ: په عمودي شکل د جمعې په عملیه کې عددونه څه ډول یو تر بل لاندې لیکل کیږي؟ دریم ګروپ: هغه ځواب چې دریم ګروپ ووایه صحیح دې او که غلط؟ که چیرې غلط وي د هغه صحیح ډول کوم دی؟ څوک ځواب وائي؟ که چیرې ځواب صحیح وي نو هغوی دې تشویق کړای شي.

له لومړي ګروپ څخه زلمي دې د ۴+۳۵ پوښتنه پر تخته باندې حل کړي. له دویم ګروپ څخه نذیر دې د ۷۳+۶ پوښتنه پر تخته باندې حل کړي. له دریم ګروپ څخه احمد دې په ۵۶+۷ کې یویز او لسیز وښیئي.

۲-ښاغلي ښوونکي دې یو زده کوونکي د ټولګي مخې ته را وغواړي یو بنډل د لسي او ۳ یو دانه یي دې په یوه ځای کې او ۶ لرګوټي دې په بل ځای کې کښیږدي، او یو زده کوونکي دې را وغواړي ترڅو هغوی یو له بله سره جمع کړي که چیرې زده کوونکي ۳ یو دانه یي له ۶ شپږ یو دانه یي سره جمع کړي او بیا د لسي بنډل د هغو تر څنګ کښیږدي او له یوه څخه تر ۱۹ پورې ولولي صحیح ده له هغه پرته ښاغلي ښوونکي دې مرسته او لارښوونه وکړي او وروسته نور زده کوونکي دې د تختې خواته را وغواړي او عملیه دې پر تخته سرته ورسوي.

او بیا دې له نورو ګروپونو څخه یو زده کوونکي را وغواړي د ۴+۱۳ او

۱۳
+ ۴
______

پوښتنې دې حل کړي.

د هغه له حل کولو وروسته له یوه بل زده کوونکي څخه دې پوښتنه وشي. چې د دواړو د جمعې په حاصل کې څه توپیر ویني؟ یعني کوم یو یې زیات او کوم یو یې لږ دی؟ ښایي چې زده کوونکي ځواب ووایي، یو له بله سره مساوي دي.

بیا دې ښوونکي ورته ووایي په دواړو حالتونو کې یعني په عمودي او افقي شکلونو کې لومړی دې یویز له یویز سره جمع شي، وروسته دې لسیز له لسیز سره جمع شي. دې فعالیت ته دې دوام ورکړي ترڅو ټول زده کوونکي په کې برخه واخلي، له هغه وروسته د زده کوونکو پام دې د کتاب د لوست اړوند یعني(۸۰) مخ ته راوګرزول شي او پوښتنې دې په ګروپي ډول حل کړي.

**۳-مشق او تمرین:** ښاغلي ښوونکي دې د زده کوونکو پام د کتاب ۸۱مخ ته راوګرځوی داسې مثالونه چې ۹۰ مساوي کیږی ۹ لسیو سره او ۶ لسیه مساوي کیږي د (۶۰) سره ورته حل کړي. زده کوونکي کولای شي چې هغه د موادو په واسطه هم وښیئي بیا دې دوه لومړني چوکاټونه، د لومړي ګروپ زده کوونکو ته او دوه دویم چوکاټونه دې، د دویم ګروپ زده کوونکو او دوه دریم چوکاټونه دې د دریم ګروپ زده کوونکو ته ورکړل شي ترڅو په ټولګي کې یې حل او ورباندې کار وکړي. او ښاغلي ښوونکي دې د کار کولو د لړۍ څخه څارنه وکړي.

**۴-ارزونه:** د دې لپاره چې ښاغلي ښوونکي ځان ډاډه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي او د ستونزو په صورت کې دې ورسره مرسته وکړي.

**پوښه:** څوک وایي چې ۸ لسیه څوکیږي؟
څوک وایي چې ۷۰ څو لسیه کیږي؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي،
۷۳ + ۵ =? او ۱۹ + ۰ = ?

**ذهنیت:** زده کوونکي د لسیو (لسیزو)، د دوه رقمي او یو رقمي عددونو د جمع کولو په پوهیدو سره په خپل ذهن او فکر کې بدلون پیدا کوي او په خوبۍ سره د ریاضي د زده کولو لپاره ځانونه چمتو کوي.

**ارزښت:** د لسو له پیژندلو څخه زده کوونکي د اخستلو او پلورلو په ورځني معاملو کې ګټه اخلي.

**۵-کورنۍ دنده:** هر یو زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل او له خپل ځان سره راوړي.

? ______ = ۵ لسیه، ? ______ = ۷ لسیه

? ______ = ۴ لسیه، ۱۵ + ۴ = ?، ۶۷ + ۲ = ?

**د لوست عنوان: د دوو، دوه رقمي عددونو جمع**
**(۸۲) مخ، شپږ دیرشم لوست**
**وخت: د لوست دوه ساعتونه (۴۵) دقیقې**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي هغه دوه رقمي عددونه جمع کړي چې یویز یې صفر وي.

**اصطلاح ګاني:** عددونه، دوه رقمي، یویز، صفر.

**د لوست مرستندویه مواد:** د لرګیو د لسیو بنډلونه، وړې ډبرې او نور محیطي مواد.

**فعالیتونه:**

۱-ښاغلي ښوونکي دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو وویشي د هر ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وګوري. اشتباه ګاني دې د زده کوونکو یا ښوونکي په واسطه اصلاح شي. او لاندې پوښتنې دې وشي.

لومړی ګروپ: ۷۰ څو لسیه کیږي؟ ۲ لسیه څو کیږي؟

دویم ګروپ: ۸۰ څو لسیه کیږي؟ ۵۰ څو لسیه کیږي؟

دریم ګروپ: ۵ لسیه څو کیږي؟ ۶۰ څو لسیه کیږي؟

له لومړي ګروپ څخه اسد دې ووایي د ۲۵ او ۲۷ په منځ کې کوم عدد دی؟

له دویم ګروپ څخه زلمي دې ووایي په ۶۶ چې ۲ ور زیات شي څو کیږي؟

له دریم ګروپ څخه: محمود دې ووایي له ۵۵ څخه چې ۳ تفریق شي څو پاته کیږي؟

۲-ښاغلی ښوونکي دې دوه زده کوونکي د ټولګي ومخې ته را وغواړي او یوه ته دې د لرګیو د لسیو دوه بنډلونه ورکړي. او بل ته دې هم د لرګیو د لسي یو بنډل ورکړي. او زده کوونکو ته دې ووایي وګورئ چې د هر یوه په لاس کې د لسیو څو بنډلونه دي.

هغوی یې ویني او وایي د لرګیو د لسیو ۳ بنډله دي. څه وشول چې د لسیو دری بنډله شول هغوی به وایي د لرګیو د لسیو یو بنډل او دوه بنډله یو له بله سره یوځای شول چې په پای کې یې د لرګیو د لسیو درې بنډله جوړ کړل. په همدې ډول یو زده کوونکي دې راوغواړي او هغه ته دې د لرګیو د لسیو درې بنډله او بل زده کوونکي ته دې د لرګیو د لسیو دوه بنډله ورکړي. بیا دې هغو ته ووایي تاسو دواړه خپل لرګوټي اسد ته ورکړئ. بیا دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. چې د اسد په لاس کې څو لرګوټي دي؟ هغوی لسئ شمیري، ځواب ورکوي ۵ لسیه کیږي. ښاغلي ښوونکي دې بیا پوښتنه وکړي ۵ لسیه څو کیږي؟ ښایي چې ووایي ۵۰ کیږي. وروسته دې ښاغلي ښوونکي د زده کوونکو پام د کتاب ۸۲مخ ته راوګرزوي او هغوی ته دې ووایي چې لومړې لس ګوټي سره یوځای کوو، لس ګوټي شمیرو له شمیرلو وروسته د لس ګوټو اړوند عدد لیکو. مثلاً ۳ لسیه+۲ لسیه = ۵ لسیه دي. د جمع کولو طریقه دې هغوی ته داسې څرګنده کړي او زده



اتم فصل

د دوو دوه رقمي عددونو جمع کول

شپږدیرشم لوست

هدف: زده کوونکي وکولای شي هغه دوه رقمي عددونه چې یویز یې صفر وي جمع کړي.

۳۰
+ ۲۰
۵۰

۳ لسه
+ ۲ لسه
۵ لسه

۳۰
+ ۴۰
۷۰

۳ لسه
+ ۴ لسه
۷ لسه

ښاغلی ښوونکی دهغو دوه رقمي عددونو جمع کول، چې یویز یې صفر وي دشکلونو اوبنډلونو څخه چې دلسو په ډول جوړ شوي دي کار واخلی په ګروپی ډول په زده کوونکو باندې کاروکړئ.

۸۲

کوونکو ته دې ور زده کړي.

۳۰ ⟵ ۳ لسیه      ۱۰ ⟵ ۱ لسیه
+ ۴۰ ⟵ ۴ لسیه +      + ۴۰ ⟵ ۴ لسیه +
۷۰      ۷ لسیه      ۵۰      ۵ لسیه

ښاغلي ښوونکي دې په همدې ډول پوښتنې د زده کوونکو په واسطه کار وکړي ترڅو د پوښتنو د حل طریقه د هغو په ذهن کې ځای ونیسي.

**۳-مشق او تمرین:** په همدې ډول هغه ورووستي پوښتنې چې کار شوي دي د زده کوونکو په واسطه حل شي. او په همدې ډول نورې پوښتنې دې هم د زده کوونکو په واسطه طرح او حل شي. او ښاغلي ښوونکي دې د کار کولو د لرۍ څارنه وکړي.

**۴-ارزونه:** ښاغلي ښوونکي دې د خپل ځان د ډاډینې لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي او د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:** څوک وایي: ۴لسه+۲ لسه څو کیږي؟ څوک وایي: چې ۵لسه+۳لسه څو کیږي؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي چې لاندې پوښتنې حل کړي.

۳۰ ⟵ ۳ لسیه
+ ۲۰ ⟵ ۲ لسیه +

**ذهنیت:** د لسونو د جمعې په نوې طریقې باندې په پوهیدلو، د زده کوونکو ذهن او فکر بدلون مومي د هغه له زده کولو څخه خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:** د دې عملیې په پوهیدو سره زده کوونکي په ورځنۍ ژوند کې د شیانو د اخستلو او پلورلو په وخت کې ګټه اخلي.

**۵-کورنۍ دنده:** هر یو زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل او له ځانه سره راوړي؟

۶۰ ⟵ ۶ لسیه      ۸۰ ⟵ ۸ لسیه
+ ۲۰ ⟵ ۲ لسیه +      + ۱۰ ⟵ ۱ لسیه +

۷۰ ⟵ ۷ لسیه
+ ۲۰      ۲ لسیه +

**د لوست عنوان: د دوه، دوه رقمي عددونو جمع (۸۳-۸۴) مخونه**

**وخت: د لوست درې (۴۵ دقیقه یې) ساعتونه**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړای شي دوه، دوه رقمي عددونه چې یویز یې صفر وي جمع کړي.

**اصطلاح ګاني:** صفر، دوه رقمي، جمع او یویز.

**د لوست مرستندویه مواد:** د لسیو بنډلونه، لرګوټي، کڅوړې، وړې ډبرې او نور د چاپېریال مواد.

**فعالیتونه:**

۱-ښاغلي ښوونکي دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو وویشي د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وګوري. په اشتباه ګانو باندې دې زده کوونکي بحث او خبرې وکړي او په اصلاح کولو کې دې ښوونکي برخه واخلي، بیا دې لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: ۲ لسه+ ۱ لس څو لسه کیږي، او د هغو د جمعې حاصل کوم عدد را ښییږي؟

دویم ګروپ: ۳ لسه + ۲ لسه، څو لسه کیږي او د هغو د جمعې حاصل کوم عدد را ښییږي؟

دریم ګروپ: ۴ لسه + ۱ لس، څو لسه کیږي، د هغو جمعې حاصل کوم عدد دی؟

له لومړي ګروپ څخه احمد دې ووایي ۷ لسیه څو کیږي؟

له دویم ګروپ څخه اسد دې ووایي ۸۰ څو لسیه کیږي؟

له دریم ګروپ څخه نذیر ۲ لسه او ۱ لسي، څو لسه کیږي؟

۲-ښاغلي ښوونکي دې یو زده کوونکي ځان ته نږدې راوغواړي او هغه ته دې د لرګوټو ۳ بنډله د لسیو ورکړي، بیا دې یو بل زده کوونکي را وغواړي او هغه ته دې د لرګوټو ۵ بنډله د لسیو ورکړي ترڅو وشمیري، او بیا دې هغوی دواړو ته ووایي چې تاسو دواړه خپل لرګوټي و اسد ته ورکړئ، کله چې لرګوټي یې و اسد ته ورکړل، یو بل زده کوونکي ته دې ووایي چې هغه وشمیري او ووایي چې څو لسه شوي دي؟ زده کوونکی هغه شمیري او ویني چې هغه ټول لرګوټي ۸ بنډلونه د لسیو دي، او بیا دې پوښتنه وکړي څو دي؟ ښایي چې هغه ووایي (۸۰) دي. بیا دې په یوه کڅوړه کې لس دانه یې وړې ډبرې په یوه میز باندې، او ۴ کڅوړې نورې چې په هر یوه کې یې لس داني وړې ډبرې وي، په بل میز باندې په جلاء، جلاء توګه کښیږدي او یو زده کوونکي ته دې ووایي راشه د ورو ډبرو دا کڅوړې چې په هره یوه کې یې لس داني دي او په دوو میزونو باندې اېښودل شوي دي هغه دې په یوه میز باندې په جلاء، جلاء توګه کښیږدي کله چې زده کوونکي دا کار سرته ورسوي، له یوه بل زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي. څو کڅوړې چې هر یوه یې لس داني وړې ډبرې لري وشمیري، هغه یې شمیري او وائي، پنځه کڅوړې دي چې په هر یوه کې لس داني وړې ډبرې دي. له همدې زده کوونکي څخه دې بیا پوښتنه وکړي څو کیږي؟ ښایي چې ووایي ۵۰ کیږي. وروسته ښاغلي ښوونکي دې د زده کوونکو پام د کتاب ۸۳مخ ته راوګرزوي.

د شکلونو او تصویرونو له مخې دا عملیې دې پر تخته باندې د هغوی لپاره ولیکي او هغوی ته دې ور زده کړي.

۱۰ + ۴۰ = ۵۰ ← ۱ لس + ۴ لسه = ۵ لسه

۳۰ + ۵۰ = ۸۰ ← ۳ لسه + ۵ لسه = ۸ لسه

و هغو ته دې یادونه وشي. چې لومړې لسونه یو له بله سره جمع کړي وروسته د هغو اړوند عددونه جمع کړي.

**۳-مشق او تمرین:** د زده کوونکو پام دې د کتاب ۸۴مخ ته راوګرزوي. مشق او تمرین دې د زده کوونکو په واسطه. په ګروپي ډول کار وشي او ښاغلي ښوونکي دې د کار له لرې څخه څارنه وکړي.

**۴-ارزونه:** ښاغلي ښوونکي دې د خپل ډاډګیرنې لپاره چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه، له هغوی څخه پوښتنې وکړي او د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوښتنه:** څوک وایي ۹ لسه څو کیږي؟

څوک وایي چې ۳ لسه +۲ لسه څو لسه کیږي او کوم عدد دی؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي چې لاندې پوښتنې حل کړي او د هغو اړوند عدد ولیکي.

۳ لسه + ۶ لسه = ☐

۵ لسه + ۴ لسه = ☐

**ذهنیت:** د لسونو جمع کول له لسونو او د هغه د اړوند عدد په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن او فکر بدلون مومي اوکولای شي چې هغه په بانک نوټونو باندې تطبیق کړي.

**ارزښت:** زده کوونکي کولای شي د دې پوهې په اخستلو سره د ورځني شیانو په اخستلو او پلورلو کې ګټه واخلي.

**۵-کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل او له ځانه سره راوړي.

۳ + ۹۱

۵ + ۱۲

**د لوست عنوان: د دوو، دوه رقمي عددونو جمع (۸۵) مخ، اووه ديرشم لوست**

**وخت: درې د لوست ساعتونه(۴۵ دقيقه يې)**

**هدفونه:**زده کوونکي وکړای شي دوه رقمي عددونه له دوه رقمي عددونو سره جمع کړي.

**اصطلاح ګانې:** دوه رقمي، يويز، لسيز او جمع.

**د لوست مرستندويه مواد:** لرګوټي، د لسونو بنډلونه، ورې ډبرې او نور.

**فعاليتونه:**

۱–ښاغلې ښوونکې دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو وويشي. د هر ګروپ کورنۍ دنده دې د ښوونکي په واسطه وليدل شي. اشتباه ګانې دې پر تخته باندې فهرست شي. د ښوونکي يا زده کوونکو په واسطه دې اصلاح شي او بيا دې لاندې پوښتنې وشي.

لومړی ګروپ: ۲لسه + ۳لسه، څو لسه کيږي.

دويم ګروپ: ويلای شي څو لسه+څو لسه= ۵لسه کيږي.

که چيرې زده کوونکي، ۱ لس او ۴ لسه يا ۲ لسه، ۳ لسه ووايي صحيح ده.

دريم ګروپ: ويلای شي چې ۳۰ د کوم دوو عددونو د جمعې حاصل دې په داسې حال کې چې يويز يې صفر وي، که چيرې زده کوونکي ونشي ويلای، ښاغلې ښوونکي دې ځواب ووايي.

لومړۍ ګروپ څخه امين دې ووايي ؟=۳۰+۲۰ کيږي؟ او له دويم ګروپ څخه اسد دې ووايي ۴ لسه او ۲ لسه، څو لسه کيږي؟ او له دريم ګروپ څخه ۲ لسه+۷لسه څو لسه کيږي.

۲–ښاغلې ښوونکې دې يو زده کونکې د ټولګې مخې ته راوغواړي ۲۱ لرګوټي دې هغه ته ورکړي او له هغه څخه دې پوښتنه وکړي، څو لسيز او څو يويز دي؟ هغه د يويزو او لسيزو بنډلونه ويني او ځواب ورته وايي، يو، يويز او ۲ لسيز دي. همدارنګه بل زده کوونکي دې راوغواړي ۱۳ لرګوټي دې هغه ته ورکړي او له هغه څخه دې هم پوښتنه وکړي. له تا سره څو لسيز او څو يويز دي؟ ښايي چې هغه ځواب ووايي يو لسيز او ۳ يويز دي. بيا دې هغوی دواړوته ووايي، تاسو دواړه خپل لرګوټي امين ته ورکړئ، کله چې لرګوټي يې امين ته ورکړل له يوه بل زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي چې د امين په لاس کې څو لرګوټي د لسيز او څو يويز دي؟ هغه بنډلونه شميري او وايي چې ۳ بنډله د لسيز او ۴ يويز دي، بيا دې هم له يوه زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي امين دا لرګوټي له کومې خوا کړل، هغه کيداې شي ځواب ورکړي. دوه بنډله د لسو او يو يو دانه يې له يوه زده کوونکي، او يو بنډل د لسو او درې يو دانه يې له بل زده کوونکي څخه واخستل او سره يوځای يې کړل، چې، ۳ بنډله د لسو، او ۴ يو دانه يې شول، له همدې زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي چې څو دي؟ ښايي چې هغه ځواب ووايي، ۳۴ دي. ښاغلې ښوونکې دې د زده کوونکو پام د کتاب ۸۵مخ ته راوګرزوي. د شکلونو او تصويرونو له مخې دې هغوی ته ووايي، کله چې تاسو ۲۲ له ۱۴ سره جمع کوئ. د شکل او رسم سره سم ۲۲ لوبياوې او ۱۴ لوبياوې د عيني، شمير په واسطه جمع کړئ وروسته ۲۲ او ۱۴ يو تر بل لاندې وليکئ او داسې چې يويز تر يويز لاندې او لسيز تر لسيز لاندې راشي، بيا زده کوونکو ته وواياست چې يويز له يويز او لسيز د لسيزو سره داسې جمع کوو.

د ۲ او ۴ عددونه چې يويز دي او د جمعې حاصل يې ٦ کيږي هغه د يويز په ځای کې ليکو، او هم ۲، او ۱ چې د لسيزو په ځای کې دي او د جمعې حاصل يې ۳ کيږي، هغه د لسيزو په

| يويز | لسيز |
|---|---|
| ۲ | ۲ |
| ۴ | +۱ |
| ٦ | ۳ |

ځاې ليکو چې د جمعې حاصل يې ۳۶ کيږي په همدې ډول څو نور مثالونه دې د زده کوونکو په واسطه کار وشـــي. د اشتباه ګانو او ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**۳–مشق او تمرين:** د کتاب په همدې مخ کې دې د شکل او تصويرونو له مخې، زده کوونکي په خپله ورکړل شـــوې پوښتنې حل کړي. په دې صورت کې دې دويم چوکاټ لومړي ګروپ ته، د رسم چوکاټ دې دويـــم ګـــروپ تـــه او څلورم چوکاټ دې دريم ګروپ ته ورکړل شي او ښاغلي ښوونکي دې د کارځارنه وکړي.

**۴–ارزونه:** د دې لپاره چې ښاغلي ښوونکي ځان ډاډه کړي چې آيا زده کوونکو نوې لوست زده کړې او که نه؟ لـــه زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:** څوک ۲۵، او ۳۱ يو له بله سره جمع کوي؟

څوک ۲۶، او ۲۳ يو له بله سره جمع کوي؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي چې لاندې پوښتنې حل کړي.

| ۲۱ | ۲۷ | ۱۳ |
|---|---|---|
| ۳۶ + | ۱۱ + | ۲۵ + |

**ذهنيت:** زده کوونکي د دوو، دوه رقمي عددونو د جمعې په پوهيدو او سرته رسولو سره په خپل ذهن او فکر کې بدلون پيدا کوي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:** د دې نوې عمليې په زده کولو سره زده کوونکي کولای شي چې په خپل ورځني ژوند کې ګټه ورڅخه واخلي.

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د کتاب د ۸۵مخ وروستی چوکاټ د شکلونو له مخې د رياضي عمليه په خپلو کتـــابچو کې وليکي او حل دې کړي.

**عنوان: د دوه رقمي عددونو جمع کول:**

**مخ:** (۸۸–۸۷–۸۶)

**وخت:** درې (۴۵ دقيقه يي) ساعتونه

**هدفونه:** زده کوونکي دوه رقمي عددونه پــه افقــي او عمودي توګه جمع کړای شي او په عبارتي پوښتنو کې يويز اولسيز و پيژني.

**اصطلاح ګاني:** عمودي، افقي ، دوه رقمي

**دلوست مرستندويه مواد:** يوګوني، لسګوني بنډلونــه ،کاني

**فعاليتونه:**

۱– ښوونکي دي زده کوونکي په ۳ ګروپونو بانــدې وويشي ديوه ګروپ کورنۍ دنده دي دبل ګروپ لــه خواوکتل شي په اشتباه ګــانو بانــدې دي بحــث او مذاکره وشي او اصلاح دي شي بيادې لاندې پوښــتنې وپوښتل شي.

لومړي ګروپ: ۲۶+۱۳ څرنګه جمع کيږي؟

دويم ګروپ: په ۱۴+۲۳ کې لومړی کوم رقمونــه او وروسته کوم رقمونه سره جمع کيږي؟

دريم ګروپ: ۱۲+۳۱ دجمعې عمليــه دې دمــوادو پواسطه تر سره کړي

دلومړي ګروپ څخه: احمد په ۲۷+۳۲ کې کوم يويز دي او کوم لسيز دي؟

د دويم ګروپ څخه امين ۲۷+۳۲ يو له بله سره جمع کړئ

دريم ګروپ څخه: اسده ۲۷ او ۳۲ کــې د ۷ او ۲ رقمونو ته يويز او د ۲ او ۳ رقمونو ته لسيز ويلې شو؟

۲– ښوونکي دې له يوه ګروپ څخه يو زده کوونکي تختې ته وروغواړي هغه ته دې ووايي چې

$$\begin{array}{r} ۴۵ \\ +\ ۵۴ \\ \hline \end{array}$$

سره جمع کړي کله چې زده کوونکي عمليه تر سره کړه او ځواب يې تر لاسه کړ بيا دې لــه بل ګروپ څخه بل زده کوونکي راوغواړي او ورتــه ودې وايي چې؟ ۲۶+۳۸ دې سره جمع کړي دا زده کوونکي هم سوال حلوي او سم ځواب پيــدا کــوي بيادې د دويم ګروپ څخه له يوه زده کــوونکي نــه پوښتنه وکړي چې دغه دوه ځوابونه يو له بله څخه فرق

**اته ديرشم لوست**

هدف :زده کوونکي وکولای شي چې دوه، دوه رقمي عددونه په افقي اوعمودي شکل سره جمع دړي.

| | |
|---|---|
| ۲۵+۳۱= ، ۲۵ + ۳۱ = ۵۶ | ۲۶+۵۳=۷۹ ، ۲۶ + ۵۳ = ۷۹ |
| ۱۴+۸۳ = ، ۱۴ + ۸۳ | ۳۲+۱۶ = ، ۳۲ + ۱۶ |
| ۳۳+۴۲ = ، ۳۳ + ۴۲ | ۶۸+۱۱ = ، ۶۸ + ۱۱ |
| ۱۲+۴۶ = ، ۱۲ + ۴۶ | ۳۵+۳۴ = ، ۳۵ + ۳۴ |
| ۳۷+۴۲ = ، ۳۷ + ۴۲ | ۱۳+۶۴ = ، ۱۳ + ۶۴ |

ښاغلی ښوونکی زده کوونکی دي دوه، دوه رقمي عددونه په عمودي او افقي توګه سره جمع کړي مشق اوتمرين دي وکړی او هغوی دي په دي پوه کړي چې هيڅ وخت نشو کولاي يويز له لسيزو سره جمع کړو وواياست چې ۲ لوڅه دلسو او ۳ لوڅه ديويزو ۵۰ افغانی نه کيږي بلکه ۲۳ کيږي که چيري ۲ او ۳ سره جمع کړو غلطه ده ځکه ۲ دلسو افغانيو لوټونه لسيز او۳ چې يويز دي نه جمع کيږی.

۸۶

لري؟ ممکن هغه ووايي چې سره مساوي دي پدې ځاې کې دی ترې پوښتنه وکړي چې د جمع کولــو شــکل څرنګه دي دپخوانيو معلوماتو له مخې چې لــري يــې امکان لري ووايي چې يويې عمودي شکل او بــل يــې افقي شکل. که چيرې هغوی و نه ويلې شول ديوه بــل زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي. د مشکلاتو پــه صورت کې دې ښوونکي لارښوونه او مرسته ورســره وکړي په همدې توګه دې فعاليتونو ته ادامه ورکړي تر څوټول زده کوونکي د جمعي طريقه په افقي او عمودي توګه ښه زده کړي بيا دې ښــوونکي

$$\begin{array}{r} ۴۵ \\ +\ ۵۴ \\ \hline \end{array}$$

او ۷۹=۲۶+۵۳ مثالونه پر تخته باندې زده کوونکو تــه حل کړي او هغوی ته دې روښــانه کــړي چــې پــه دواړوصورتونو (عمودي او افقي) کې يــويز ديــويز او لسيز دلسيز سره جمع کيږي هيڅ وخت دې يــويز د لسيز سره نه جمع کوي ځکه چې غلط دې بيا دې زده کوونکي دپام وړ مخ ته متوجــه کــړي دوه لــومړني چوکاټونه دې لومړي ګروپ، دوه دويم چوکاټونه دې دويم ګروپ او دوه دريم چوکاټونه دې دريم ګروپ ته ورکړي تر څو په ټولګي کې په هغو باندې کارو کړي. دوه څلورم چوکاټونه دې په انفــرادي شــکل د زده کوونکو څخه و پوښتل شي ښوونکي دې متوجــه وي چې د دوه رقمي عددونو جمع کول د دوه رقمي ســره

هدف : مشق او تمرین ددوو، دوه رقمي عددونو جمع

| یوېز لسیز | یوېز لسیز | یوېز لسیز |
|---|---|---|
| ۸۱ + ۱۱ | ۶۵ + ۳۴ | ۲۴ + ۳۲ |
| ۳۳ + ۵۵ | ۵۵ + ۳۲ | ۷۲ + ۱۶ |
| ۳۸ + ۶۱ | ۴۵ + ۵۴ | ۳۲ + ۵۵ |
| ۱۴ + ۶۴ | ۱۲ + ۴۱ | ۲۱ + ۱۴ |
| ۵۷ + ۱۲ | ۶۶ + ۱۳ | ۲۰ + ۷۰ |

ښاغلی ښوونکی په دې مشق او تمرین کې چې ددوو، دوه رقمي عددونو دجمعي عملیه ده اوحاصل ونــه لــري دزده کوونکی په واسطه حل او کار وکړئ.

۸۷

چي حاصل ونه لري په زده کوونکو باندې کار وشي؟

**۳– مشق او تمرین:** هغوئ دې په ۸۷مخ کې پوښتنو ته متوجه کړي او زده کوونکي دې هغه پــه ګروپــي شکل حل کړي په داسې ډول چي دلومړي چوکات ۳ سوالونه دې لومړي ګروپ ته، ددویــم چوکـــات ۳ سوالونه دې دویم ګروپ ته او همـــدا رنګـــه ددریـــم چوکات ۳ سوالونه دې دریم ګروپ ته ورکړي چې پر هغو باندې کارو کړي ښوونکي دې دکـــار دجریـــان څارنه وکړي د ۸۸ مخ ټولې پوښتنې دې چـــې د دوه رقمي عددونو شمیرنه ده دکورنۍ دندې په توګـــه زده کوونکو ته ورکړي.

**۴– ارزونه:** ددې لپاره چې ښوونکې ځپل ځان مطمئن کړي چې زده کوونکو نوې لوست زده کـــړی دی او که نه، د زده کوونکو ځخـــه دې پوښـــتنې وکـــړي. دمشکلاتو د موجودیت په صورت کې دې لاربنوونه او مرسته ور سره وکړي.

**پوهه:** څوک وایې چې کوم عدد ۷ لس او ۴ یو لري؟ څوک د ۴۲+۳۳ عملیه په عمودي شکل لیکي؟

هدف :مشق اوتمرین، او ددوه رقمي عددونوشمیرل.

۱- لاندې هریو عدد دځو لسیزو اوځو یویزو ځخه جوړ شوي دي

۷۷ ۳۱ ۵۹ ۸۳ ۹۸ ۶۷ ۴۷ ۱۶ ۲۵

۶۱ ۵۲ ۷۳ ۸۷ ۹۶ ۴۸ ۳۵ ۱۹ ۲۴

۲- داسې عدد ولیکئ چې ۸ لسه او۵ یو ولري او هغه ولولئ.

۳- داسې عددولیکئ چې۹ لسه او٦ یو ولري او هغه ولولئ.

۴- لاندې هریو عدد ولولئ دهغولسیز، او یویز وښیاست.

۹۹ ۱۲ ۴۸ ۷۵ ۵۹ ۶۷ ۴۳ ۷۲

۵- کوم عدد ده چې ۷ لسه او۴ یو لري.

٦- کوم عدد ده چې ٦ لسه او۸ یو لري.

۷- کوم عدد ده چې ۹ لسه او۷ یو لري.

۸- کوم عدد ده چې ۴ لسه او۵ یو لري.

۹- ـــ یو+ ـــ لس = ۸۴ ، ـــ یو + ـــ لس = ۵۲

۱۰- لاندې جدولونه بشپړ کړی.

| ۳۱ | | | ۲۸ | | | ۲۵ | | | | ۲۱ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰ | | | | | | ۷۰ | ۸۰ | ۹۰ | | |

مشق اوتمرین: ښاغلی ښوونکی یو یا دوه مثالونه دزده کوونکو په برخه اخستنې سره حل کړئ وروسته نوري پـــاتې پوښتنې دزده کوونکو په واسطه حل او کاروکړئ.

۸۸

**مهارت:** زده کوونکي لاندې پوښتنې حل کړای شي

۳۲+۵۳=? | ٦۸+۱۱ =?

۸۱ + ۱۰ ، ۵٦ + ۳۳

**ذهنیت:** د جمعي د(افقي او عمودي) طریقو پـــه زده کولو د زده کوونکو په فکر او ذهن کـــې بـــدلون را منځته کیږي، کومه طریقه چې هغوي ته آسانه وي پـــه خوښۍ د هغې ځخه کار اخلي.

**ارزښت:** ددې نوې عملیې له زده کیـــدو ځخـــه زده کوونکي دځپلو ورځنیو چارو (پیرلو او پیرو دلو) کـــې کار اخلي.

**۵–کورنۍ دنده:** د ۸۸ مخ پوښتنې دې زده کوونکوته د کورنۍ دندې په توګه ورکړل شي.

۱– د ۱،۲ او ۳ پوښتنې دې دویم ګروپ ته ورکـــړل شي.

۲– ۴ ، ۵ او ٦ پوښتنې دې دریم ګروپ ته ورکـــړل شي.

۳– ۷، ۸ او ۱۰ پوښتنې دې لـــومړي ګـــروپ تـــه ورکړل شي.

نه دیرشم لوست

هدف: زده کوونکي وکولای شي تر ۹۰ پورې عددونه وشمیري او پرتله یې کړي.

۳۰ > ۲۰

۳۰ > ۴۰

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۷۰ | ☐ | ۸۰ | ۷۰ | ☐ | ۹۰ |
| ۵۰ | ☐ | ۴۰ | ۴۰ | ☐ | ۳۰ |
| ۷۰ | ☐ | ۶۰ | ۶۰ | ☐ | ۵۰ |
| ۶۳ | ☐ | ۳۶ | ۵۲ | ☐ | ۲۵ |
| ۷۵ | ☐ | ۸۰ | ۸۰ | ☐ | ۷۰+۱۰ |
| ۲۵ یویز | ☐ | ۳ لسه | ۷۰ | ☐ | ۵۰+۱۰ |
| ۵ یویز | ☐ | ۶۵ | ۹ لسه | ☐ | ۷ لسه |
| ۴ لسه | ☐ | ۴۰ یودانه یې | ۸۰ | ☐ | ۸ لسه |

ښاغلی ښوونکی پورتنی مثالونه زده کوونکو ته څرګند کړئ د ( > ، = او < ) نښو څخه په کار اخستنې سره پوښتنې دزده کوونکو په واسطه حل او کار وکړئ.

۸۹

**عنوان: ددوه رقمي عددونو شمیرل او پرتله کول نه دیرشم لوست**

**مخونه:** (۹۰-۸۹)

**وخت:** درې ( **۴۵ دقیقه یې) ساعتونه.**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړاې شي تر ۹۰ پورې عددونه وشمیري او پر تله یې کړي.

زده کوونکي دې تر ۹۹ پورې وشمیري او په ترتیب سره یې ولیکي.

**اصطلاح ګانې:** شمېرل، پرتله(مقایسه)، لسیز.

**دلوست مرستندویه مواد:** لسګوني بنډلونه، لرګوټي او دچاپېریال نور مواد.

**فعالیتونه:**

۱- ښوونکي دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو بانـدې وویشي، دیوه ګروپ کار دې دبل ګروپ په واسـطه وکتل شي د هر ګروپ تیروتنې دې پـه جـلا توګـه فهرست شي او اصلاح دې شي بیادې لاندې پوښتنې و پوښتل شي.

لومړي ګروپ: کوم عدد ۴ لسه او ۸ یو لري؟

دویم ګروپ دې په ۹۹،۴۸ او ۵۹ عددونو کې یویز او لسیزونښيي.

دریم ګروپ دې هغه عدد چې ۹ لسه او ٦ یو یو دانه یې ولري ووائي اوويي لیکي.

دلومړي ګروپ څخه دې رشید دغه پوښتنه حل کړي؟

$$\begin{array}{r} ۴۵ \\ + ۵۴ \\ \hline \end{array}$$

د دویم ګروپ احمد:کوم عدد ۴ لسـیز او ۵ یـویز لري؟

هدف: تر۹۹ پورې دعددونو دشمیرلو لپاره مشق اوتمرین.

په لاندې جدول کې عددونه په ترتیب سره ولیکئ.

۰ ، ۱ ، ۲ ، ۳ ، ۱۳ ، ۲۳ ، ۳۲ ، ۵۱ ، ۶۴ ، ۸۴ ، ۹۲ ، ۹۹

| ۳۰ | | ۲۶ | | | ۲۰ | | ۱۶ | | ۱۲ | | ۸ | | ۴ | ۲ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

| ۴۵ | | ۳۹ | | ۳۳ | | ۲۷ | | ۲۱ | | ۱۵ | | ۹ | ۶ | ۳ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

له ۸ څخه پیل کړئ ۲ ، **۲ ورڅخه تفریق کړئ.**

له ۹ څخه پیل کړئ ۳،۳ ورڅخه تفریق کړئ.

ښاغلی ښوونکی: جدولونه زده کوونکوته تشریح اوڅرګند کړئ وروسته بیا جدولونه دزده کوونکو په واسطه بشپړ او ډک کړئ.

۹۰

**دریم ګروپ امین: دغه تش ځایونه**

**ـــــــ یو + ـــــــ لس=۸۴ پر تخته باندې ډک کړئ.**

۲- ښوونکي دې یـو زده کـوونکي مـثلاً زلمـی راوغواړي او هغه ته دې د لرګوټودوه بنډلونه ورکـړي یوبل زده کوونکي مثلاً نذیر دې را وغواړي او هغې ته دې دلسګونو ۴ بنډلونه ورکړي دیو بـل دریـم زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي چې د کوم یوه سـره دلرګوټو دلسګونو بنډلونه زیات دي هغـه ګـوري او وایي چې دنذیر سره زیات دي په همدېي ترتیـب دې دوه نور زده کوونکي مثلاً امین او محمـود د ټـولګي مخې ته راوغواړي، امین ته دې د لرګوټـو ۳ لسـیز بنډلونه او محمود ته دې د لرګوټو ۵ لســیز بنډلونـه ورکړي له بل زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکـړي چې دکوم یوه سره دلرګوټو لسیز بنډلونه زیـات دي، زده کوونکي یې شمیري او وایي چې د محمود سـره دلرګوټو لسیز بنډلونه زیات دي بیادې ښـوونکي زده کوونکي د کتاب ۸۹ مخ ته متوجه کړي دشـکل او تصویر له مخې دې دلسګونو بنډلونه وروښيي او هغوی ته دې ووایي چې په یوه چوکات کې دلر ګوټو دلسیزو ۲ او په بل چوکات کې دلرګوټو ۳ لسیز بنډلونـه دې کوم یویې زیات دي؟

هغوی به ووایي چې ۳ دلسیزو بنډل زیات دي بیادې له یوه زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي چې دوه دلسـو بنډلونه څوکیږي، هغه ځواب ورکوي چې ۲۰ او لــه بل زده کوونکي څخه دې پوښته وکړي چې ۳ لسـیز بنډلونه څوکیږي؟ هغه هم ځواب ورکوي چې (۳۰) او دیوه دریم زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي چــې

۳۰ ډیردي او که ۲۰ هغه ممکن ځواب ورکړي چې ۳۰ ډیر دي اوکه چیرې ویې نه ویلي شول، ښوونکې دې دلسګونو دبنډلونو د شکل له مخې هغوی ته ووایي کله چې د ۲ لسو ځخه دري لسه زیات دي نو ۳۰ هم لــه ۲۰ څخه زیات دي او پر تخته باندې دې هغوي ته ورزده کړي.
چې ۳۰ > ۲۰ څخه په همدې ترتیب دې بل چوکاټ چې ۴ دلرګوټو لسګون بنډلونه او ۳ دلرګوټو لسګون بنډلونه لري لومړې دې لسګون بنډلونه سره پرتله کړي بیادې هغوی ته ولیکي چې ۳۰ < ۴۰ څخه او په همدې مخ کــې دې پوښتنې په ګروپي توګه په زده کوونکو باندې کاروشي تر څو چې د (<، =، >) علامو څخه په ګټه اخیســتنې سره پوښتنې حل کړي.
**۳- مشق او تمرین:** په راتلونکي مخ (۹۰) کې چې یو جدول زده کوونکو ته ورکړل شویدی د زده کوونکو هــر ګروپ دې په ترتیب سره په هغه کې عددونه ولیکي او ډک دې کړي پدې ډول چې ښوونکې دې زده کــوونکي دهغه علامې سره سم چې دجدول ترڅنګ ایښې ده زده کوونکو ته لارښوونه وکړي جدول دې خپلو کتابچو ته نقل کړي او کار دې وکړې ښوونکې دې دکار دجریان څخه څارنه وکړي او دوه وروستني عبارتې پوښتنې دې په شفاهي توګه له زده کوونکو څخه وپوښتنې دوه وروستني جدولونه دې دکورنۍ دندې په توګه زده کوونکوته ورکړل شي.
**۴- ارزونه:** ښوونکې دې دځان د اطمینان لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي ، دمشکلاتو د موجودیــت پــه صورت کې دې هغوي ته لارښوونه وکړي او مرسته دې ورسره وکړي.
**پوهه:** څوک وایي چې ۷۰ زیات دي که ۹۰؟
څوک وایي چې ۶۰ لږ دي او که ۵۰؟
**مهارت:** زده کوونکي دې په لاندې پوښتنوکي د <، >، = علامې استعمال کړای شي.
۸ یو  ۸ لس، ۹ لس  ۷ لس، ۷۰  ۱۰ + ۵۰، ۳ لس  ۲۵ یو
**ذهنیت** ☐ دوه رقمي عددونو ☐ دکم او زیات ☐ هیدلو او پرتله کولو سره ☐ زده کوونکو په ذهن او فکــر کــې بدلون راځئ او خوښي څرګندوي.
**ارزښت:** زده کوونکي ددوه رقمې عددونو پدې ډول مقایسې او پرتله کولو سره، پخپل ورځیني ژوندانه کې له هغوي څخه ګټه اخلي.
**۵-کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې لاندې جدولونه په داسې ډول ډک او بشپړ کړي.
چې په لومړي جدول کې د ۲ عدد څخه پیل ۲،۲ او د ۳ څخه پیل- ۳،۳ زیات کړي

| ۲ | ۴ | | ۸ | | ۱۲ | | ۱۶ | | ۲۰ | | | ۲۶ | | ۳۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

| ۳ | ۶ | ۹ | | ۱۵ | | ۲۱ | | ۲۷ | | ۳۳ | | ۳۹ | | ۴۵ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

نهم فصل

ددوو، دوه رقمي عددونو تفریق

څلویښتم لوست

هدف:زده کوونکي وکولای شي داسي دوه،دوه رقمي عددونه یوله بله تفریق کړي چې یویزېې صفروي

۳۰ − ۱۰ = ۲۰

۳ لسه − ۱ لسه = ۲ لسه

۲لسه = ۲لسه – ۴ لسه

۴۰ − ۲۰ = ۲۰

۳ لسه = ۲ لسه – ۵ لسه

۵۰ − ۲۰ = ۳۰

۵۰ − ۳۰

۶۰ − ۳۰ = ۳۰

۷۰ − ۴۰

۸۰ − ۲۰

ښاغلی ښوونکی ددوو، دوه رقمي عددونو په تفریق کې چې یویز یې صفر وي په شفاهی توګه داسي تشریح اوځرګند کړئ، ۳له دري لسو څخه عبارت ده له درولسو څخه چې یو، لس منفی شي دوه لسه یعني ۲۰ پاتې کیږي. په همدې ډول د۵۰، ۴۰ او نورو په برخه کې دزده کوونکو په واسطه کار و کړئ او پوښتنې دې کتابچو ته نقل اوحل کړی.

۹۱

هدف : مشق اوتمرین یوله بله دداسې دوه رقمی عددونو تفریقول چې یویز یې صفر وي.

۷۰ − ۳۰ = ۴۰

۸۰ − ۳۰ =

۶۰ − ۲۰ =

۷۰ − ۵۰ =

۹۰ − ۲۰ =

ښاغلی ښوونکی داپوښتنې دهغو دوه رقمي عددونو څخه ددوه رقمي عددونو تفریقول دي چې یویز یې صفر وي زده کوونکي دې پوښتنې کتابچو ته نقل او حل کړي.

۹۲

**دلوست عنوان: د دوه، دوه رقمي عددونو تفریق**

**(۹۱– ۹۲) مخونه، څلویښتم لوست**

**وخت:** دلوست (**۴۵ دقیقه یي**) دري ساعتونه

**هدفونه:**زده کوونکي وکړاي شي د دوه رقمـي عـدد څخه یو دوه رقمي عدد تفریق کړي په داسي حال کي چي یویز یي صفر وي.

**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي، صفر، یویز، تفریق

**دلوست مرستندویه مواد:** دلرګوتو دلسونو بنډلونه، او دلس ګونو داسي نور شیان .

**فعالیتونه:**

۱– ښاغلي ښوونکي دې زده کوونکي په ۳ ګروپونـو وویشي، کورنی دندې دې ووینې ، داشتباه ګـانو پـه برخه کې دې بحث او خبري وکړي او هغه دې اصلاح کړي یا دې لاندې پوښتنې وکړي.

لومړي ګروپ: د ۷۷، ۵۹، او ۸۳ په هر یوه عدد کي څو لسیزه او څو یویزه دي؟

دویم ګروپ: د ۹۹، ۷۵ او ۴۸ په هر یوه عدد کـې څو یویزه دي؟

دریم ګروپ: هغه عدد چې ۹ لسه او ٦ یو دانـه یـي ولري کوم دی؟ او هم هغه عدد چې ۸ یو دانه یي او ٦ لسه ولري کوم دی؟

له لومړي ګروپ څخه: اسد دې ووایي:۵ لسیز ډیـر دي او که ٦٥ یویز؟

له دریم ګروپ څخه: امین دې ووایي ۹ لسیز ډیـردې او که ۷ لسیزه؟

له دریم ګروپ څخه: محمود دې ووایي ۸۰ زیات دي او که ۸ لسیزه؟

۲– ښاغلي ښوونکي دې په خپل میز باندې دلر ګوتـو دلسیو ۴ بنډلونه کیږدي بیـا دې یـو زده کـوونکې راوغواړي او هغه ته دې ووایي چې دا څو لسـیز دي؟ ښایي هغه ووایي ۴ لسیزه دي بیادې هغه ته ووایي چې دلسیوله دې ۴ بنډلونو څخه دلسیو دوه بنډله تفریـق یعني کم کړي، زده کوونکي دلسیو دوه بنډله تفریـق کوي بیادې له یوه زده کوونکي څخه پوښتنه وکـړي چې اوس په میز باندې دلسیو څو بنډله ویني؟ هغه یـي ویني او وایي دلسیو دوه بنډلـه دي پـه همـدې ډول دلرګوتو دلسیو ۵ بنډله دې په خپل میز باندې کښېږدي او یوه زده کوونکي ته دې ووایي چې دا څودي؟ ښایي هغه ووایـي چـې ۵۰ دي بیـا دې دویـم زده کوونکي ته ووایي راشه د ۵ لسیو له دې بنډلونو څخه چې په میزباندې ایښي دي د لسو درې بنډلونه کم کړه بیا دې دریم زده کوونکي راوغواړي او له هغه څخـه دې پوښتنه وکړي چې پرمیز باندې د لسو څو بنډلونـه پاتې دي؟ ښایي هغه ووایي دلسیو دوه بنډلـه، بیـادې پوښتنه وکړي: ولې په میزباندې دلسو دوه بنډله پـاتې دي ؟ هغه یي څرګنده وي چـې د ۵ لسـیو بنـډلونو

دلسیو ۳ بنډله تفریق شول او دلسو ۲ بنډله پاتې شو په همدې ډول دې په شفاهي توګه د زده کوونکو په واسطه مشـــق او تمرین وشي بیادې ښاغلې ښوونکي د زده کونکو پام دکتاب ۹۱مخ ته راوګرزوي دشکلونو او تصویرونو له مخـــې او په عملي توګه دې پر تخته هغوي ته وروښيي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۳۰ | | | | ۳ لسه |
| ۲۰ − | → | | | ۲ لسه − |

او همدارنګه دکتاب دلوست دویم مثال ۲ لسه= ۲ لسه− ۴ لسه یا ۲۰=۲۰ − ۴۰ دا مثال دې زده کوونکوتـــه پـــر تخته باندې کاروکړي بیادې دریم چوکاټ لومړي ګروپ ته او څلورم چوکات دې دویم ګروپ او پنځم چوکـــاټ دې دریم ګروپ ته ورکړي تر څو زده کوونکي په هغه باندي کارو کړي او ښاغلی ښوونکی دې دکارکولو له جریان څخه څارنه وکړي .

**۳− مشق او تمرین:** دکتاب ۹۲ مخ دهغو دوه، دوه رقمې عددونو تفریق دی چې یویز یې صفردی، د زده کوونکو پـــه واسطه دې کاروشې په داسي حال کې چې لومړنی چوکاټ دې لومړي ګروپ ته دویم چوکاټ دې دویم ګروپ ته ، او دریم چوکاټ دې دریم ګروپ ته ورکړل شي تر څو هغوي په خپلو کتابچوکې کارو کړي، څلورم او پنځم چوکاټونـــه دې په انفرادي توګه د زده کوونکو په واسطه کاروشي او ښاغلي ښوونکي دې دکار کولود جریان څارنه وکړي.

**۴− ارزونه:** ددې لپاره چې ښاغلې ښوونکې خپل ځان ډاډه کړي چي آیا زده کوونکو نوې لوست زده کړې دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي، دستونزو په صورت کې دې لارښوونه او مرسته ورسره وکړي.

**پوهه:** څوک وایي چې ?= ۴ لسه − ٦ لسه څو کیږي.

څوک وایي چې?= ۳ لسه − ۷ لسه څوکیږي.

**مهارت:** زده کوونکي لاندي پوښتني حل کړاي شي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۷۰ | | ۷ لسه | | ۸۰ | | ۸ لسه |
| ۵۰ − | → | ۵ لسه − | | ۴۰ − | → | ۴ لسه − |

**ذهنیت:** ددوه رقمې عدد ونو د تفریق د دې نوي عملیې په زده کولو سره، د زده کوونکو ذهن او فکر بدلون مـــومي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:** زده کوونکی د تفریق د دې نوی عملیې په پوهیدو سره کولای شي په خپل ورځنی ژوند کې کـــار ورڅخـــه واخلي.

**۵−کورنی دنده:** زده کوونکي دې د کتاب ۹۲مخ وروستی پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل او له ځانه سره راوړي.

? = ۲۰ − ۹۰     ? = ۵ لسه − ۷ لسه     ۷۰ / ۳۰ − → ۷ لسه / ۳ لسه −

? = ۲ لسه − ۹ لسه     ? = ۵۰ − ۷۰

**دلوست عنوان: د دوه، دوه رقمي عددونو تفریق**

**(۹۳) مخ، یوځلویښتم لوست**

**وخت: د لوست ( ۴۵ دقیقې یې) درې ساعتونه**

**هدفونه:**زده کوونکي وکړای شي د دوه رقمي عددونو څخه دوه رقمي عددونه تفریق کړي او د تفریق په عملیه کې یویز او لسیز په نظر کې ونیسي.

**اصطلاح ګانې:** دوه رقمي، دتفریق عملیه، یویز، لسیز

دلوست مرستندویه مواد: دلر ګوټو دلسو بنډلونه، یو دانه يي لر ګوټي، وړې ډبرې او نور.

**فعالیتونه:**

۱- ښاغلي ښوونکي دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو وویشي د زده ګوونکو کورنۍ دندې دې ووینې.

اشتباه ګانې دې اصلاح شي، بیادې لاندې پوښتنې وکړي.

لومړي ګروپ: ۹ لسه – ۴ لسه مساوي له څولسو سره کیږي؟

دویم ګروپ: ?=۳۰-۸۰ څو کیږي؟

دریم ګروپ: ۸ لسه- ۲ لسه مساوي له څو لسو سره کیږي؟

له لومړي ګروپ څخه: فرید دې ووایي ?=۲۰-۳۰ څو کیږي

له دویم ګروپ څخه: امین دې ووایې: ۴ لسه- ۳ لسه مساوي له څولسو سره کیږي؟

له دریم ګروپ څخه: زلمي دې ووایي: ?=۳۰-۹۰ څو کیږي؟

۲- ښاغلي ښوونکي دې یو زده کوونکې دټولګي مخې ته راوغواړئ ۳۸ لر ګوټي دې هغه ته ورکړي او له هغه څخه دې پوښتنه وکړي په دې لرګو ټوکې څولسیز او څویویزدي؟ هغه دلسیز او یویز بنډلونه وینې او ځواب وایي ۳ لسیز او ۸ یویز دي او بیادې یو بل زده کوونکې ته ووایي راشه له دې لرګوټو څخه د ۱۳ په شمیر لر ګوټي جلا او تفریق کړئ ښاغلي ښوونکي دې پام وکړي چې زده کوونکي له ۸ یویز وڅخه ۳ یویز او له ۳ لسیز و څخه یو لسیز تفریق کوي او که نه؟ که چیرې همداسې وکولای شي څو ښه به وي له هغه پرته

ښاغلي ښوونکي دې لارښوونه او مرسته ورسره وکړي چې دا لر ګوټي څویویز او څولسیز لري؟ ښایي هغه ځواب ووایې چې ٦ یویز او ۴ لسیز لري، بیادې همدې زده کوونکي ته ووایې چې له ۴٦ لرګوټو څخه ۲۴ لرګوټي تفریق کړي که چیرې زده کوونکي له ٦ یویزو څخه ۴ یویز تفریق کړي او له ۴ لسیزو څخه ۲ لسیز تفریق کړي زده کوونکي دې په ښو کلمو سره تشویق کړي.

بیادې له بل زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي له ۴٦ لرګوټو څخه چې ۲۴ لرګوټي تفریق شول نور څو لرګوټې پاتې دي ښایي زده کوونکي ځواب ووایي، ۲۲ لرګوټي نور پاته کیږي.

بیادې پوښتنه وکړي په ۲۲ لرګوټې کې څولسیز او څو یویز دي؟ ښایي چې هغه ووایي، ۲ یویز او ۲۲ لسیز دي. وروسته دې ښاغلي ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب ۹۳مخ ته راوګرزوي.

هغه مثال چې دموادو په واسطه کار شوي دی زده‌کوونکوته په لاندی ډول روښانه کړي.

۳۵ - ۱۲ = ۲۳

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ۵ | ۳ |
| ۲ | ۱ - |
| ۳ | ۲ |

ددوو، دوه رقمي عددونو په تفريق کې څرنګه چې په شکل کې وليدل شو په عمودي توګه لومړي عددونه داسي ليکـــو چې يويز تر يويز لاندې اولسيز تر لسيز لاندې راشي، بيا له يويز څخه يويز او لسيز څخه لسيز تفريق کوو مـــثلاً ۵، او ۲ چې يويز دې له ۵ څخه چې ۲ تفريق شي ۳ پاتي کيږي ۳ دتفريق دحاصل په يويزو کې ليکو همدارنګـــه ۳ او ۱ چـــي دلسيز و په ځاي کي دي له ۳ څخه چې ۱ تفريق شي ۲ پاتي کيږي.

۲− دلسيزو په ځاي کي ليکو چې په عمودي توګه دتفريق حاصل ۲۳ کيږي په همدي ډول نـــوري پوښـــتني دې د زده کوونکو په واسطه کار وکړي، دتفريق دا عمليه دې دلرګوټو او وړو ډبرو په واسطه سرته ورسوي.

**۳− مشق او تمرين:** دکتاب داړوند لوست په همدي مخ کې دې دويم چوکاټ لومړي ګروپ دريم چوکات دې دويم ګروپ او څلورم چوکاټ دې دريم ګروپ ته ورکړي تر څو زده کوونکي په هغه باندي کار وکړي او په خپلو کتـــابچو کې يې حل کړي او ښاغلې ښوونکي دې دکارکولوله لړۍ څخه څارنه وکړي.

**۴− ارزونه:** ښاغلی ښوونکي دې د خپلې ډاډينې لپاره د زده کوونکو څخه د نوی لوست پـــه اړه پوښـــتني وکـــړي دستونزو په صورت کې دې لارښوونه او مرسته وکړي.

پوهه: ځوک د ۴۵ له عدد څخه د ۲۳ عدد تفريق کوي؟

ځوک د ۵٦ له عدد څخه د ۳۲ عدد تفريق کوي؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتني حل کړي.

| ۷۵ | ۳۷ | ۲۵ |
|---|---|---|
| − ۴۲ | − ۲۴ | − ۱۳ |

**ذهنيت:** ددو و دوه رقمي عددونو د تفريق د عمليې په پوهيدلو سره په زده کوونکو کې د ذهن او فکر بدلون را منځ ته کيږي او ددې نوي عمليې په پوهيدو سره خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:** ددې نوي عمليې په پوهيدو سره زده کوونکي د خپل ورځني ژوند په معاملو کې کارور څخه اخلي.

**۵− کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې دتفريق لاندني عمليې د کورنۍ دندې په توګه سرته ورسوي.

| ۵۳ | ۴۵ | ۳۸ |
|---|---|---|
| − ۲۱ | − ۲۳ | − ۲۴ |

**دلوست عنوان: د دوه رقمي عددونو تفريق په عمودي او افقي شكل سره**

**(۹۴– ۹۵)**

**وخت: دلوست درې ( ۴۵ دقيقه يي) ساعته**

**هدف:** زده كوونكي وكړاي شي د دوه رقمي عددونو تفريق په عمودي او افقي شكل سره ورسوي.

**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي، عمودي، افقي، تفريق.

**دلوست مرستندويه مواد:** دلرګوټو دلسو بنډلونه يــو دانه يي لر ګوټي، وړي ډبري او نور.

**فعاليتونه:**

۱– ښاغلي ښوونكي دي زده كوونكي په ۳ ګروپونــو وويشي، كورنى دندې دې دښوونكي په واسطه وليدل شي دهر ګروپ اشتباه ګانې دې په جلاء جلاء توګــه پر تخته باندې فهرست او اصلاح شي.

لومړي ګروپ: د ٥٦ له عدد څخه د ۲۴ عدد څرنګه تفريق كيږي.

دويم ګروپ: د ? =۳٦– ٦۷ په عمليه كې لــومړي كوم رقمونه او دويم كوم رقمونه يو له بله تفريق كيږي.

دريم ګروپ:د? =۲۱– ۳٦ دتفريق عمليه دموادو په واسطه سرته ورسوي.

له لومړي ګروپ څخه صابر: د ?=۴۲– ٦۷ عمليــه سرته ورسوه.

له دويم ګروپ څخه زلمي !دې ووايي چې له كــوچنى عدد څخه لوي عدد تفريق كولاي شې؟

له دريم ګروپ څخه: د ۷۵ او٨٦ په دوو عددونو كې يويز او لسيز وښاياست او يو له بله يي تفريق كړى؟

۲– ښــاغلي ښــوونكــي دې لـــه يـــوه ګـــــروپ څـــخه يو زده كـــوونـــكي تختې ته راوغـــــواړي او هغـــه ته دې ووايي د دتفريق عمليه سرته ورسوه، $\begin{array}{r} 68 \\ -\ 34 \\ \hline \end{array}$

كله چې زده كوونكو دا عمليه سرته ورسوله او صحيح ځـــواب يي په لاس راوړ، هـــغه دې په ښـــو كلمـــو سره تشويق كړي او بيا دې له بل ګروپ څخه يو زده كـــوونـــكي راوغواړي او هغه ته دې ووايـــي چـــي

| | |
|---|---|
| ۷۹ − ۳۲ = | ۶۴ − ۱۲ |
| ۸۸ − ۲۴ = | ۹۸ − ۶۴ |
| ۵۷ − ۴۱ = | ۷۸ − ۴۶ |
| ۶۶ − ۲۳ = | ۹۷ − ۳۲ |
| ۴۸ − ۳۵ = | ۷۵ − ۵۲ |

هدف : مشق اوتمرين ددوورقمي عددونو منفى كول په عمودي او افقي توګه.

ښاغلي ښوونكى دمخكنيو درسونو څخه په ګټه اخستني سره ددوورقمي عددونو څخه ددوورقمي عددونو دتفريــق پوښتني دزده كوونكو په واسطه حل او كار وكړئ.

۹۴

?=۳۴– ٦٨ پوښتنه حل كړه دا زده كــوونكى هــم پوښتنه حل كوي او صحيح ځـــواب پـــه لاس راوړي بيادي ددريم ګروپ له يوه زده كوونكي څخه پوښـــتنه وكړي دتفريق ددې عمليو ځوابونه څه توپير لري؟ ښايي هغه وو ايي چې ځوابونه يو له بله سره مســـاوي دي او بيا دې پوښتنه وكړي چې دتفريق دعمليي شكلونه څـــه ډول دي؟ ښايي هغه ووايي چې يو يې عمودي شكل او بل يې افقي شكل دى.

څكه داډول پوښتنې مخ كې هم كار شـــوي دي كـــه چيرې ونشي ويلاې له يوه بل زده كوونكي څخـــه دې پو ښتنه وكړي د نه ويلو په صورت كې دې ښــــوونكى مرسته ورسره وكـــړي او دې فعاليـــت تـــه دې دوام وركړي تر څوټول زده كوونكي برخه واخلي دعمودي او افقي تفريق په طريق باندې ښه پوه شي بيادي ښاغلي ښوونكي دي

$\begin{array}{r} 64 \\ -\ 12 \\ \hline \end{array}$ او ?= ۱۲– ٦۴ مثالونه پــر تختــه زده كوونكو ته حل كړي او هغوئ دې پــوه كــړي او هغوته دې ووايي چې په دواړه طريقو د عمــودي او افقي كې له يويز څخه يويز او له لسيز څخه لسيز تفريق كيږي. بيادې ښوونكي د زده كونكو پام دكتاب اړوند لوست يعني (۹۴) مخ ته راوګرزوي د دريم چوكـــاټ پوښتني دې دريم ګروپ ته وركـــړي او هغـــوي دې پوښتني په خپل كتابچو كي حـــل كـــړي او ښـــاغلي

هدف : دجمعې اوتفريق دعمليو مشق اوتمرين .

| ۴۹ + ۲۰ | ۷۲ + ۲۴ | ۴۶ + ۳۰ |
|---|---|---|
| ۴۶ − ۱۶ | ۳۳ + ۱۶ | ۵۱ + ۱۴ |
| ۴۵ − ۴۱ | ۱۸ + ۸۱ | ۵۲ − ۳۲ |
| ۷۲ − ۴۰ | ۴۰ + ۲۲ | ۵۹ − ۳۰ |
| ۵۸ − ۱۵ | ۴۵ + ۲۴ | ۶۹ − ۵۶ |
| ۲۸ + ۳۰ | ۴۲ − ۲۲ | ۶۷ − ۴۲ |

ښاغلی ښوونکی ددوورقمي عددونو دجمعې اوتفريق مشق اوتمرين دزده کوونکو په واسطه کار وکړئ دستونزو په شتوالی سره دهغوی سره دي مرسته وشي.

۹۵

ښوونکي دي دکارکولو مراقبت وکړي او پنځم چوکاټ دي په جلاء جلاء يعني انفرادي توګه پر تخته د زده کوونکو په واسطه کار وشي.

**۳– مشق او تمرين:** د زده کوونکو پام دکتاب يعنې ۹۵ مخ ته راوګرزوي په پوښتنو باندي دي په ګروپي ډول کاروشي او پوښتنې دي دښوونکي په واسطه ګروپونو باندي وويشل شي تر څو په هغو باندي کار وکړي دکتاب دريم (۹۶) مخ چي دجمعي او تفريق د عمليو مشق او تمرين دی دکورنۍ دندې په توګه دي ورکړل شي.

**۴– ارزونه:** ددې لپاره چې ښاغلې ښوونکي ځان ډاډه کړي له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي ستونزو په صورت کې دي مرسته اولارښوونه وکړي.

**پوهه:** څوک کولای شي چي ووايي: کوم عدد ۸ لسه او ۷ يودانه يي لري؟

څوک د ۵۴–۷۸ عمليه په عمودي ډول ليکي.

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي چي لاندې پوښتنې حل کړي.

۶۸–۳۰=؟، ۵۳–۳۳=؟

| ۸۱ − ۴۰ | ۵۶ − ۳۳ |
|---|---|

**ذهنيت:** ددوه عمودي او افقي طريقو په پو هيدو سره د زده کوونکو ذهن او فکر بدلون مومي او دتفريق دپوښتنو دحل لپاره له هغې طريقي څخه چې دهغوي لپاره آسانه ده کار اخلي.

**ارزښت:** ددې نوي عمليې په يو هيدو سره زده کوونکي کولای شي دور ځني ژوند د معاملو په ورکړه راکړه کې ګټه ور څخه واخلي.

**۵–کورنۍ دنده:** هر زده کوونکي دي لاندې پوښتنې په خپل کورکې حل او له ځان سره راوړي.

۱– د ۹۶ مخ دلومړنې چوکاټ درې پوښتنې دې لومړي ګروپ ته ورکړل شي.

۲– د (۹۶) مخ ددويم چوکات درې پوښتنې دې دويم ګروپ ته ورکړل شي.

۳– د (۹۶) مخ د دريم چوکاټ درې پوښتنې دې دريم ګروپ ته ورکړل شي.

۴– دهمدې مخ (۶) پاتې پوښتنې دې په انفرادي توګه د زده کوونکو په واسطه کار وشي.

هدف : دجمعې اوتفريق دعمليو مشق اوتمرين.

| ۹۵ − ۱۰ | ۳۴ − ۱۲ | ۶۷ − ۳۲ |
|---|---|---|
| ۴۸−۲۵=□ | ۳۷−۳۰=□ | ۶۷−۴۵=□ |
| ۸۲+۱۱=□ | ۹۵−۱۱=□ | ۹۳−۸۲=□ |
| ۴۵ + ۳۴ | ۷۹ − ۴۵ | ۷۹ − ۳۴ |
| ۶۴ + ۲۳ | ۶۰ + ۳۰ | ۵۴ + ۳۲ |
| ۷۲ + ۲۱ | ۴۴ + ۲۴ | ۹۲ + ۷ |

ښاغلی ښوونکی دي دوورقمي عددونو دجمعې اوتفريق مشق اوتمرين دزده کوونکو په واسطه کار وکړئ.

۹۶

**دلوست عنوان: عبارتي پوښتنې**

**(۹۷، ۹۸) مخونه، دوه څلويښتم لوست**

**وخت: د لوست درې ساعته(۴۵دقيقه)**

**هدفونه:** زده کوونکي وکړاې شي دجمعې او تفريق عبارتي پوښتنې ولولي او په مفهوم باندې يې پوه شي او حل يې کړي.

**اصطلاح ګانې:** عبارتي پوښتنې، مفهوم، جمع او تفريق.

دلوست مرستندويه مواد: وړې ډبرې لرګوټي، قلمونه، او نور

**فعاليتونه:**

۱– ښاغلي ښوونکي دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو وويشي دهغو کورنۍ دندې دې ووينې اشتباه ګانې دې پر تخته باندې فهرست کړي، بحث او خبرې دې ورباندې وشي او هم اصلاح دې شي بيادې لاندې پوښتنې وکړي

لومړي ګروپ: د ۴۳– ۷۸ پوښتنه د تفريق افقي شکل او که عمودي شکل دې .

دويم ګروپ: د $\begin{array}{r} 96 \\ -\ 54 \\ \hline \end{array}$ پوښتنه دتفريق افقي شکل دی که کوم بل شکل دتفريق؟

دريم ګروپ: د ۸٦ له عدد څخه د ۵۳ عدد په دوو افقي او عمودې طريقو سره تفريق کړی.

له لومړني ګروپ څخه: اسد دې ووايي د ۵۸ او ۳۴ په عددونو کې کوم عدد له کوم عدد څخه تفريق کيږي.

له دويم ګروپ څخه: احمد دې د ٦۳ له عدد څخه د ۴۰ عدد په افقي شکل سره تفريق کړي.

له دريم ګروپ څخه: محمود دې د ۷٦ له عدد څخه د ۴۳ عدد په عمودي شکل سره تفريق کړی.

۲– په لومړي وار کې دې ښاغلي ښوونکي په خپله داعبارت زده کوونکو ته ولولي. زلمي ۹ افغانۍ لري او مشر ورور يې هم ۵ افغانۍ ورکړي، څوک ويلاي شي، چې (زلمي څو افغانۍ لري؟ د زده کوونکوله ډلې څخه

دوه څلويښتم لوست

هدف: زده کوونکي وکولای شي دجمعې عبارتي پوښتنې ولولئ اوحل يې کړي اوله عبارت څخه مفهوم واخستلای شي.

۱-دسهار اوماپښين دلمانځه رکعتونه ټوله څو رکعته کيږي.

۲-دوني په يوه ځانګه کې ٦ چوغکۍ ناستي وي او۳ نوري هم دهغوی په څنګ کې کيناستلي اوس دونۍ په ځانګه کې څو چوغکۍ ناستي دي.

۳-لطيفی ۷ داني پنسلونه درلودل او۱۱ دانۍ پنسلونه يې نور واخستل اوس لطيفه څو پنسلونه لري؟

۴-احمد۷ داني چارمغزه درلود ۵ داني چارمغز يې نور واخستل اوس احمد څو چارمغزه لري؟

۵-په يوه بڼ کې۸ نيالګی وو. ښوال ٦ نيالګی نور کينول اوس په بڼ کې څو نيالګۍ دي؟

٦-زلمي ۱۲ افغانۍ درلودي ۱٦ افغانۍ پلار ورته ورکړلي اوس زلمۍ څو افغانۍ لري؟

ښاغلی ښوونکی عبارتي پوښتنې دزده کوونکو په واسطه ولولئ او دهغو په واسطه يې حل کړئ.

۹۷

دې په خپله خوښه يو زده کوونکي د تختې مخې ته راشي او هغه دې حل کړي بيادې يو بل زده کوونکي دمواد و په واسطه يعني دوړو ډ برو په واسطه پوښتنه حل او تشريح کړي په همدې ډول ښاغلي ښوونکي دې يوبل عبارتي پوښتنه لکه(احمد ۱٦ افغانۍ لری د هغو څخه ئې په ۹ افغانيو قلم او کتابچه واخيستل څوک ويلاي شي چې اوس له احمد سره څو افغاني پاتې دي ؟

بيادې په خپله خوښه يو زده کوونکي دټولګي مخې ته راشي دمواد په واسطه يعني دوړو ډبرو يا لرګوټو په واسطه دې تشريح کړي او يو بل زده کوونکي دې راوغواړي هغه پوښتنه دې پر تخته باندې حل کړي بيادې دکتاب عبارتي پوښتنې په وار سره د زده کوونکو په واسطه ولولي او دهغو دمفهوم پوښتنه دې ورڅخه وکړي او حل دې کړي که چيرې زده کوونکو د مفهوم په څرګندولو کې ستونزې درلودلی ښاغلي ښوونکي دې مرسته ورسره وکړي او همدارنګه د زده کوونکو پام دې دکتاب ۹۷مخ عبارتي پوښتنو ته راو ګرزوي د(۱، ۲) عبارتي پوښتنې دې لومړي ګروپ ، (۴،۳) عبارتي پوښتنې دې دويم ګروپ او (۵،٦) عبارتي پوښتنې دې يو ګروپ ته ورکړي تر څو هغوې

هدف: زده کوونکي وکولای شي دمنفی اوجمعي عبارتي پوښتنې ولولي اوحل یې کړی.

۷-هغه عددونه چې د۱۲ او۱۹ په منځ کې دي ولیکئ؟

۸-یوه بزګر ٦۰ میږي درلودي ۲۰ میږي یې نوري راونیـــولي اوس بزګر څومیږي لري؟

۹-احمد ۵۰ افغانۍ درلودلې ۴۰ افغانۍ نوري مور ورته ورکړلې اوس احمدڅو افغانۍ لري؟

۱۰- محمود ۸ داني مڼي درلودلي دهغو څخه یې ۲ دانې مڼـــې خپل ورورته ورکړلي اوس له محمود سره څوداني مڼي پاتي دي؟

۱۱- یوه زده کوونکی ۲۸ افغانۍ درلودي چې دهغو څخه یـــې په ۱۴ افغانیو قلم او کتابچۍ راونیولي اوس دهغه سره څو افغانۍ پاتي دي؟

۱۲- په یوه الماري کې ۷۰ ټوکه دریاضي او دري کتابونه دي. ۲۰ ټوکه دهغو دري کتابونه دي پیداکړئ څـــو ټوکـــه یـــې دریاضي دي؟

ښاغلی ښوونکی دعبارتي پوښتنو مشق اوتمرین دې دزده کوونکو په واسطه حل شي.

۹۸

یې ولولي، دپوښتني مفهوم څرګند کړي او حـــل یـــې کړي.

**۳– مشق او تمرین:** دبل وروستي مخ یعنې(۹۸) مـــخ پوښتنې دې په ګروپي شکل د زده کوونکو په واســـطه کارو شي تر څو زده کوونکي پوښتني په غـــور ســـره ولولي او مفهوم یې تشریح کړي او بیـــا دې د هغـــه دریاضي افاده ترتیب او حل کړي پوښتني دې په لاندي ډول ګروپونوته ورکړل شي.

د(۷، او ۸) عبارتي پوښتني دې لومړي ګـــروپ(۹ او ۱۰) عبارتي پوښتني دي دویم ګـــروپ او همدارنګـــه (۱۱ او ۱۲) عبارتي پوښتني دي دریـــم ګـــروپ تـــه ورکړل شي او حل دې کړي او ښاغلي ښـــوونکي دې دکار کولو له جریان څخه څارنه وکړي.

**۴–ارزونه:** ښاغلي ښوونکی دې دخپلې د ډاډ یني لپاره له زده کوونکو څخه پوښتني وکـــړي دســـتونزو پـــه صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:** څوک دا عبارتي پوښتنه لوستلی او مفهوم ویلـــی شي.

اسد له بازار څخه ۱۲ دانې ګیلاسونه راونیـــول او ۴

هدف : زده کوونکي وکولای شي دمنفی او جمعي عبارتي پوښتنې ولولي اوحل یې کړي.

۱۳- په یوه حوض کې ۹ دانې هیلۍ وي دهغو څخه ۵ دانـــي له حوض څخه دباندې ولاړي. اوس په حوض کې څـــو هیلـــۍ پاتي دي؟

۱۴- دیوي ویالي په غاړه دچنار۸ وني وي له هغوڅخه یـــې ۴ ونۍ پریکړی اوس دچنار څو ونۍ پاتي دي؟

۱۵- فریدي ۱۰ افغانی درلودي دهغو څخه یې په ۸ افغانیو قلم راونیول اوس فریده څو افغانۍ لري؟

۱٦- پرویني ۱٦ ګېلاسونه راونیول دهغو څخه ۸ داني مات شول اوس پروین څو ګیلاسونه لري.

ښاغلی ښوونکی عبارتي پوښتني دې دزده کوونکو په واسطه حل شي.

۹۹

دانې یې مات شول څو دانې یې کورته راوړي دي؟

څوک دا عبارتي پوښتنه لوستلی او مفهوم ویلی شـــي؟

محمود ۵۰ افغانۍ درلودې پلار یې هم ۳۰ افغانۍ هغه ته ورکړلي اوس محمود څو افغانۍ لري.

**مهارت:** زده کوونکي وکړاې شي عبارتي پوښتني ښـــه او رواني ولولي او ښه مفهوم ترې واخیستلاي شـــي او دهغو د ریاضي افاده صحیح ترتیب کړاې شي او حـــل یې کړای شي.

**ذهنیت:** دعبارتي پوښتنو په لوستلو سره د زده کوونکو ذهن او فکربدلون مومي او د عبارتي پوښتنو د ښـــه او روان لوستلو څخه خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي کولاې شي عبـــارتي پوښـــتنې ولیکي مفهوم ترې واخلي او په خپل ورځنې ژوند کـــې ګټه ورڅخه واخلي.

**۵– کورنۍ دنده:** دکتاب د ۹۸ مخ عبـــارتي ۱۵ او ۱٦پوښتنې دې دکورنۍ دندې په توګه ورکړل شي تر څو هر یو دهغوئ حل کړي او هم په خپله هر یـــو زده کوونکې، یو، یو عبارتي پوښتنه ترتیب او حل یې کړي.